# دکتاب ځانګړني

د کتاب نوم : انساني سر کس
لیکوال : محمود نظری
موضوع : طنزونه
د چاپ کال : ۱۳۸۱ ل
کمپوز/ ډیزاین : خپله لیکوال
چاپشمېر : (۱۰۰۰) ټوکه

www.Ketabtoon.net

# فهرست

# دا خنداوې او دا ژړاوې

ځينې کره کتونکي پر دې چې ګوندي له جلا هيوادۍ سره زموږ ادبي زيږندويۍ ورو ورو له خپلې شا ته پرې ايښې ټولنې
سره واټن پيدا کوي او پردۍ کېږي ځکه زيږندويانو يې اړوند چاپيريال او تشيال( فضا ) له لاسه ورکړي او له بلې خوا يې
څنګه چې د اړوندې نوي ټولنې هغه هم لا پوره نه دي را خپل کړي ، نو د کوم نوي رنګ و خوند هيله ترې هم نه شي
کېدای خو خبره داسې نه ده ، هغو چې تر جلا هيوادۍ له مخه د ليکوالۍ ازمېښتونه او بيا نوښتونه تر سره کړی ، يا په
بله وينا د هماغې خپلې ټولنې د ژوند و ژواک تر سيوري لاندې يې پنځونې کړې او د زړه او ذهن مراندې يې ورسره
لاهماغسې ټينګې او ترينګې پاتې دي ، نو هرومرو يې نوې هستونې هم له خپل ټولنيز چاپيريال او تشياله اوبه څښي او
کوم هنري يا تخنيکي ادلون بدلون پکې هم سترګې غړوي د پرديوالي زيږنده نه ، بلکې د پرمختيايې يون ځلندويي يې
کوي ، هغه هم په کوربه هيواد و کې څه نا څه د څو کلن هوسا او بسيا ژوند و ژواک او پرمختلي اکر بکر له برکته . که څه
هم په سيده ډول يې لا له ادبي او فرهنګي پر مختګونو څخه پوره اغېزمن او برخمن شوي نه دي.

هو ، هغه کوږت تنکي کهول چې يا به کمکي منګ کې له خپلو اړونداو سره را کډوال شوي او يا هم راوروسته نړۍ ته
راغلي او د مور او پلار يا بل خواخوږي په روزنه او هڅونه يې ليکوالۍ ته ملا تړلې ، اړينه نه ده چې د خپل پلرني او مورني
ټاټوبي ټولنيز اوفرهنګي تشيال را خپل کړای شي او په دې ډول يې د هغو کره کتونکيو ورمند( قضاوت ) ربښتيا نه موندلای
شي.

زموږافغاني او بيا پښتني ټولنې له وروستيو دوه — دوه نيمو انقلابي ، جهادي اړ دوړ سره له څو پېړييزو درنو خويونو څخه
دومره سخت بوږن خوړلي چې نوريې د تل لپاره خوب له سترګو تښتېدلي او د يوه بېساري خوځون او اوښتون څپاند ا
باسين پر مخه اخېستي ، تر دې چې نه يوازې پخواني ليکوال او فرهنګيالان يې زيات هڅانده او بهانده کړی ، بلکې ډير
کم زده کړي او يا د بېلا بېلو څانګو والا يې هم ليکوالۍ او ان شعرو شاعرۍ ته راهڅولې او د جلا وطنۍ په لومړۍ لسيزه
کې يې ډير څه پر خپل فرهنګ او ادب پيرزو کړي چې که څه هم له تخنيکي هنري پلوه ډيري په ټيټه کچه راځي ، خو له
ژب- انديز پلوه يې د خپلې جنګ و جهل وجنايت ځپلې ټولنې د دردونو او کړاوونو پوره انځور ګري کړې او ورو ورو يې
ژبه ښکلاييزه جوله هم يوه بشپړتيا يې بهير ته راګډيږي.

محمود نظري له هماغو لومړيو ليکوالو او بيا ځوان طنز کښونکيو څخه دي چې لږ تر لږه يې د دغه په زړه پوري ادبي ځېل
دوه ټولګه له جلا هېوادۍ له مخه په خپل ټاټوبي کې راهستولې او دا دی د دريمي دې ډيرۍ برخه يې په جلا وطنې کې
مينه والو ته وړاندې کېږي ، که اروانباد منان ملګري او کاتب پاڅون چې په تيره لسيزه کې يې پر له پسې څو طنزيه
ټولګې به پيښور کې وکښلې او خپرې کړي که پښتونخوا بهر ونه شميرونو په لوديځ مېشتو پښتو طنز ليکونکيو کې محمود
نظري تر ميرزاعلم حميدي او خپل ورور واحد نظري را وروسته دريم پښتون دي چې د جلا وطن پښتو ادب د دغه
نومېرلې ځيل يوه په زړه پورې او نوښتګرانه ټولګه را بشپړوي او چا پ ته يې سپاري. هسې خو نن سبا هر ادبي ځيل که
داستان دی ، يا شعر ، ننداړمه(ډرامه ) ده يا فېلمنامه.... پر خپل خپل وار زموږ د وران ويجاړ هيواد او کړيدلي او کړولي
ولس د تېرو خونړيو لسيزو په تيره د وروستۍ دې يوه ځلانده هېنداره ده چې د يوې ناسپېځلې( کمونيستي ، اخوان ،
ستمي ) ټلوالې په منځته راتګ سره پکې د حجاج قطيبه ،چنګيز ، هلاکو ،ګوډ تيمور ، بابر ، الغ بېګ ،اورنګ و فرنګ
دپېړيو ناورينونه راغبرګ شول او لاتر اوسه يې پايله او پايڅوړ پاي ټکي نه دي موندلي.

زموږ ځوان طنز کښونکي په خپلو دغو پنځونوکې هڅه کړي ، هغه ګرد ناورينونه ، ناتارونه ، بدي ورځې او بدمرغي د هماغو
لوبغاړو يو کړه را انځور کړی چې د ميلونونو ربړيدلو او کړيدلو ربښتيني ښکارندويې او استازيدوني کوي هغه هم د ټوکو او
ټکالو يا به بله وينا ترخو ملنډو او خنداوو ، موسکاوو د زړه راکښو نکو وييونو. ګړنو. نغوتو ،غړونو او زهرژلو پيښو او تېښو
په ژبه يې له دې چې لوستونکي او اوريدونکي يې وار له واره رانغښتو تروو ترخو ته ځير شی ،لومړی يې بې والکه پر
موسکا او خندا راولي او بيا وروسته وروسته يې هغه موسکا او خندا پر ژړا او خواخوږي ور بدلوي. دا د طنزوهغه کوډګري
او جادوګري ده چې نور ادبي ځېلونه يې په ټول ښکلا ييز ، ننداريزاو سندريز پرداز او راکښون سره سيالي نه شي کولای.

د محمود نظري ټول (۴۲) طنزونه يا په بله وينا طنزويه کيسې او افسانې په دواړو اړوندو تخنيکي ارونو پوره سمبالې دي او
د خندا او موسکا توکي يې پکي بيا دومره راځای کړي لکه څومره چې د انتقاداو ګوتنيوي زهر پکې اخښلي راخښلي دي .
په دي لړ کې ژونۍ( حيواني ) افساني
بيا په ځانګړي ډول ډيري زړه راکښونکې او نوښتګرانه دي.

هسې خو ښېله هغې په پښتو نومهالي کیسه یې ادب کې د داسې افسانو څرک ډېر لږ لګول کیږي او بیا د داسې طنزیه افسانو څرک چې تر بل هرې ادبي زیږندې او ځیل زموږد وروسته پاتې ټولنې پرونیو او ننیو بد مرغیو ته په خورا اغېزمنه ټوکه ګوته نیسي او را بر بندوي یې .

لومړۍ بیګه یې چې (انساني سرکس)نومېږي او د ټولګې په پیل کې یې راوړې ،له هره پلوه له خپل تشیال وچاپېریاله تومنه اخلي او لوبغاړي یې هم د خپلې ټولنې له بیلابیلو ځېښلواو ځېښاکګر پاړکو او پوړونو څخه را امرلي دي که یې څه هم په ښکار ه د ژویو او ځناوروځرمنې او یا ځیرې( ماسکونه) وراغوستي او له همدې کبله یې هم ( انساني سرکس) نوم ورغوره کړي دی. دویمه( کشتی کج) افسانه یې له لنډون او کوټلتیا سره سره دومره په زړه پورې او خندوونکې ده چې ښایې زموږ په ټول طنزیه ادب کې بېساري وي.

لیکوال هرومرو د دغه طنز سو ژه د دې ځاي له تلویزوني خپرونو اخیستي خو تر انګریزي ټولنې یې له خپلې هغې سره ډېره ښه اړخ لګوي او خپل لوستونکي او اورېدونکي په نااګاهانه ډول هغې خوا ته ورځکوي.

(دا بي بي سي لندن دي !)د ښاغلي نظري یوه بله نوښتګرانه ژونۍ افسانه ده چې منځوال لوبغاړي یې چونګښه ، مار او نولی ( موش خرما) دي چې کټ مټ د افغانې ټولنې انحورګري او ښکارندويي کوي او بیا دا چې څنګه یې چوپه خوله ډیري د یوه یوازیني زورواک څخه وړاندې سره یوخوله او یو لاس کیږي را پرځوي یې او زور او ظلم ته یې د تل لپاره د پای ټکی ږدي.

په دې لړ کې ټولواکمنې( امپراتوري) نومې افسانه بیا پر یو سرچپه پایله پای ته رسي او هغه هم د یوه سپرلم( روبا) په ښخرته چل ول او چاپلوسۍ د شرمښ واکمني نوره هم پراختیا مومي او ټولواکمنۍ ته رسېږي.

نوري لنډې لنډې ژونې افساني یې بیا څه نا څه پیلامي ( سمبولیک) رنګ لري او په دې ټوکه د هرې هغې ټولنې له تشیال سره اړخ لګولای شي چې له افغانې ټولنې سره د ډیرو اړخونو له پلوه ورتوالي لري.

د ځوان نظري د قلم له تیرې او غوځنده ژبې څخه د ټولنیزو او سیاسي نا خوالو هیڅ لوبغاړي نه دی پاتې نه یې پر هیواد مشر اړې کړې ، نه پر وزیر.ښاروال او نورو جګپوړو چارواکوکارمندانو او پولیسو ، هم یې دجهادي مشر سابه پر مالګه کړي او هم یې د اړوندو ټوپکیانو ،د ناوړو ولسي دودونو او انساني ضد ناخوالوچاروال یې هم تر سیاسي هغو کم شرمولي نه دي او کله چې له کندهاره د کراچې خوا ته کډوال کیږي.په خورا نوښتګرانه توګه د خپلو انتقادي او رسواګرو ظنزونو له افغاني لوبغاړو سره پاکستاني هغه هم را ښغاړي لکه واخلې په ( د ځغاستې ملي سیالۍ)،( خوش خدمتي) او داسې نورو کې خو دغلته یې له کښلو بېلګو څخه ( وړاندوینه) له هغه په زړه پوري او ډېر خندونکو کوشنیو طنزونو څخه ګټل کیږي چې په نړیواله کچه پکې د کوربه هیواد د سرکاري اډانې کرغېړنترین استازي (پولیس) د اتلوالۍ تر پوړۍ رسوي او د اړوند مدال جوګه کوي یې ( د ځغاستې په ملي سیالۍ) کې یې بیا همدغه ساتندیه ځواک(!) د اتلولۍ په درېیم دریځ کې راوستې چې پوره دلیل یې هم ورسره و ړاندې کړي دي.

له داستاني پلوه هم د نظري پوره هڅه کړې لکه له تلوسو ،ترینګلتیاوو یا غوټو اچولو څخه تر وسې وسې کار اخېستنه او تر ستونځ (اوج) یې رسونه ، بیرته پرانېستنه او یو نابېره او زړه راکښونکې پایلې ته یې ور سیخونه چې په دې لړ کې یې ډیرې ښایسته بیلګې نېښ لکۍ وزمه پایلې راخپلوي له متني کچې له پلوه یې هر ګوره ډېر طنزونه د لنډ داستان ځانګړتیا نه را پوره کوي بلکې د ادبي ټوټو غوندې له مخ نیم زیات تېرې نه کوي چې داستانکي

(Short-short story) نوم بیا هم ورکولای شو

او یوه نیمه بېلګه یې چې د ټوکو بڼه لري ، په یوه دوو پراګرافو کې را کوټلې شوي دي ، که څه هم نن سبا د عادي لنډ داستان دودیزه کچه هم تر پنځو زرو ویېونو څو برابره لویه شوې او را کوشنۍ شوې ده او څه پکې ډېر پاموړ ګرځېدلي و هغه پر له پسې ترنیګلتیا او ځنډ وخنډ یا تلوسه او پیغام ښندې او ورسره ورسره راکښونکې پایله ده.

د سکالوو( سوژو) له پلوه هم د ښاغلي لیکوال نوښتګرانه ځانګړتیاوې او بیا هغو ته طنزو خندا ژبه ورکول د ده د لوړ استعداد او وړتیا ښکارندويي کوي اوله دې سره یې د ژوند اند او لوړ واند( تخیل). دلته کیدای شي یوه نیمه پېښه یا ټوکه یې یو مخیز ډول له خپلو موندنو او رابرسیرونو څخه نه وي . خو چې ده ورته کومه څرګندیزه او انځوریزه جامه او جوله وربښلې ،د هیڅ راز بیا ځلې( تکرار) وړم تورم ترې نه ننګیرل کېږي.

ژبنۍ جوله یې هم ښایسته ډېره زما تر لاړښود او سمون سره سمه د یوې- کره لیکنۍ پښتو ښکارندويې کوي د ځانګړې طنزیه وییپانګې ځیني دود پارسي پور وییونه مې هم لږو ډېر ور پښتو کړل لکه تبسم ، لبخند( موسکا) ریشخند یا پسخند( خندي) ، وقي ( پوخ پتیر)، یا انګینومونه ( طبیعي اصوات) لکه د مار پښ (پښهار) د خره هنګا د سپي غپا د ډول اواز لکه تک ډم ډم او همداسې پسې پاروني(هیجاني) چیغې یا غږونه لکه اخ ، اوخ یا تحسیني وییونه لکه واوا. وه وه او نور درواخله.

خو په ټولنیز او پرتلیز ډول د ښاغلي نظري پښتو لیکلار تر ډېرو نړه او کره ده لویه ښیګڼه یې هم بیا دا چې په دغه اړه د هیڅ راز لاربښوونې له منني سرنه غړوي او هغه د خپلې طنزیه لیکوالۍ لپاره ګټورې او ارزښتمنې بولې یا په بله وینا د جولې او منځپانګې تر منځ دیالکتیکي تړاوته ارزښت ورکوي.
زه پوره ډاډ او بیا باور لرم چې زموږ دغه ځوان طنز لیکونکي په خپلو راتلونکیو زیږندو وییو او هستونوکې د ژب- ښکلاییز او ژب-اندیز او بیا تخنیکي اړخ له پلوه پر لا نویو اومېښتونو او نوښتونو لاسبري ومومې او لا ستري بریاوې یې به برخه شي او همدې هیله یې پر ارزونه بس راوړم.

پوهاند دوکتور م.ا.زیار
اکسفورد مارچ ۲۰۰۳

# سریزه

انساني سرکس زما د طنزونو دریېمه ټولکه ده چې د پښتو ادبیاتو مینه والو ته یې په ډېره مینه وړاندي کوم ، دا ټولکه دوې برخې لري لومړۍ برخه یې هغه طنزونه دي چې ددویمي ټولګې وروسته لیکل شوي اوتر اوسه نه دي خپاره شوي او دویمه برخه یې هغه طنزونه دي چې د ډیرو مینه والو په غوښتنه د لومړي ټولګې( د څوکۍ خوند) او دویمي ټولګې ( سر خلاص که!) نه غوره شوي دي .

هڅه شوي چې د مروجو لغاتو تر څنګ معیاري ویيونه هم ورسره ولیکل شي.

دلته غواړم ډېر لږ پر طنز چې څه شي دي ڕنا واچوم:

د طنز مبنا شوخي او خندا ده خو خندا یې د خوشالۍ خندا نه ده دا خندا جدي ، ترخه او درونکي ده. هر طنز خندا لري خو هره خندا لرونکي لېکنه طنز نه دی ممکن هجو ، هزل یا ټوکه وي .

هجو: د شخصي غرض له مخي د عیبونو او نواقصو مسخره کولوته وایي ، چې هدف یې تحقیر او تنبه ده. هجو د مدح ضد مانا لري.

هزل: د تفریح او خوند لپاره په ډېره محدوده ځانګړي توګه ډیره رکیکه شوخي ته وایي. هزل د جد ضد مانا لري.

ټوکه : ټوکه په نامحدوده او عمومي سطح یوې منځ مهالي شوخي ته وایي چې هدف یې یوازي خوشالي او خندا ده ،د دې هدف لپاره د هري وسیلې څخه کار اخلي ،نو هدف یې هغه وسیله ده.

طنز: طنز په عمومي توګه د عیبونو او نقصونو بیان په خندا لرونکي ډول دي چې هدف یې د موضوع تحقیر او تنبه ده. د طنز وسیله اوهدف یو له بله څخه زماني واټن لري .طنز امکان لري خندا ونه لري یوازي موسکا ولري خو دا خندا او موسکا د خوشالۍ خندا نه وي دا خندا ترخه ،تاثیرناکه او دردناکه وي خندا یې زهرژلي خو اغیزمنه وي ، یا به بله وینا ټولنیز غرض لرونکې هجو ته هم طنز ویلاي شو.

د هزل او ټوکې خندا خوشالونکي خو دهجو او طنز خندا ځورونکي ده.

دطنز لیکونکي قلم د جراحي چاړه ده نه سرې وژونکي چاړه .ارام ښښونکي او سلامتي راوړنکي وي .

د ټوکو په اوریدو به شاید کټ کټ وخاندو خو د طنز په پوهیدو سره شاید وژاړو.

که چیري په دې ټولګې کې فني ، ګرامري اوچاپي تیروتنو او غلطیو سره مخامخ شي چې البته بې شمیره دي ما وبښئ البته د امکان په صورت کې

په درنښت
پوهنمل محمود نظري
لندن ۲۰۰۳

# انساني سرکس

دسرکس د ژویو غونډه هم لکه د انسانانو پر دسترخوان پیل شوه. لومړی پیل وویل:
عجب بد روږدي شوي یو ، انسان چې جیب ته لاس کړي زموږ پښې په تخنیدو شي او بې اختیاره نڅاه پیل کړو.پښې ،لاسونه ،لکۍ اوسر مو دېخوا هاخوا کیږي او سوچ کوو چې کومه ورسته کېله یا تر وخت تیر چاکلیټ راکوي. موږ هم لکه ځینو انسانانو چې د هغو سترګې دشتمنو په پورتنیو جیبونو او زموږ سترګې لاندینیو جیبونو کې وي.
زمري د یو امرانه ټوخي وروسته د تایید په ډول سروښوراوه او ویې ویل:
- مخکې به چې چا پر بریتو لاس تیر کړ ما هغه کله ژوندی پرېښودی، خو اوس که مې انسانان تر لکۍ هم ونیسي ولاکه سترګې لا ور پورته کړم. انسانان یو متل لري چې وایي : شوله ات را بخور پرده ات را بکو!
څه بد کار دی ، دې ته برګ هغه ته برګ...
پړانګ د چوک چوک په ویلو په افسوس سره وویل:
- عجبه زمانه شوه! توبه توبه ( پزه یې پرمخکه تیره کړه) او زیاته یې کړه ، موږ د انسانانو مریيان شو!....
د غونډې ګډونوال هم په توبه ایستلو شول .چا پزه پر خاورو موښله او چا لکۍ پر خاورو لړله پر مخ او پزه یې شیندله.
سپي چې سر یې په کاسه کې پټ او شرپې یې جوړ کړی وو سر را پورته کړ او ویې ویل:
- توبه ، توبه انسانان چې ځان ته اشرف المخلوقات وایي لا د نورو اقتصادي مرستو ته نځیږي او مریيتوب یې کوي خو هغو بیا موږ په یوه چاکلیټ او یوې کېلې نځوي ، خیر دا به هم تیر شي دهري تیارې پسي روښنايي ده.
آس تر یوې شینا وروسته ځان و ځنډی او ویې ویل:
د خداي لپاره د ژویو نوم مه بدوی ، موږ د دوی د خوشالۍ لپاره نځیږو ، دا وروستې کېلې او کلک چاکلټونه زموږ د خوړو توکې دي خو انسانان د نورو د ژر ولو په پار د بل ډول ته نځیږي( له ډیري غوسې یې درې واري غاړه وښوروله )
وزې چې تر اوسه یې شخوند واهه خپله کوسه ږیره یې وښوروله. بع بع یې کړل او ویې ویل:

- زه دآس صیب خبري تاییدوم نه د دې په خاطر چې دواړه په یوه ګوند کې یو .زه انسان نه یم چې باید هرومرو د ګوندي ملګري درواغ تایید کړم ( یو په غټ سر سپین درواغ وایي چې شودي توري دي او هغه بل چې ولاړ شي په بې شرمي وایي په خدای توري دي) خو زه له حقه نه تیریږم ،دا کېلې او چاکلټونه زموږ د خوراک یوه برخه ده چې انسانان هغه په ټوک ټوک راکوي . خبر شوي به یاست چې په کوم ځای کې د ژویو خوراک یو اشرف المخلوقات د خپلو بچیانو د نس مړولو لپاره کورته یوړ ، نو هغه وو چې حیوانات له لوږې مړه شول او د هغه اشرف المخلوقات بچي د وروستو خوړو له کېله په نس ناسته اخته شول دا چې اشرف المخلوقات حق په سمه نه ورکوي نو خود به موږ ورته نځیږو...
موږک څو واري پزه وکښله او لکه پوخ سیاستمدار یو ګام مخکې ته شو او بیا دوه ګامه تر شا ولاړ او ویې ویل:
دا زړې ببولالې دي حق نه ورکول کیږي حق اخیستل کیږي زه خپل حق د غاښو په زور اخلم نه چا ته نڅاه کوم او نه چا ته ټیټیږم.
کوږ چې ژبه یې پر شونډو را کښله وویل:
- ته او خداي دا سر او لکۍ ښورول نو نځیدل دي ؟ دوي سوچ کوي موږ نځیږو له اره ( اصله) دا ورزش دی .
ټوله په خندا شول
مار په پښهار سره وویل:
ږغ مه لرئ دا سیاست دی تاسو خپل سپورت کوئ.
اوښ خپله شخه غاړه څو واري اوږده کړه او ویې ویل:
اشرف المخلوقات خورا ساده دي که موږ د دوی پېښې وکړو دوی خاندي ، موږ په دوی رشخند وهو خو دوی له خندا تک شنه شي باید وژاړي...
پیشو چې مخ یې په لاسو پریولي داسې یې وویل:
موږ چې پر دوو پښو ودریږو ، دوي ته خندا ورځي ، که په ډکه خوله خبري وکړو ، یاپه نا پوهي کې ځان تر ټولو پوه وبولو . دوه پشته پر بایسکل سپاره شو...

پیشو زیاته کړه: هغه ورځ له پروګرام سره سم په ترڵو سترګو تر شا تلم خو دوي دومره وخندل چې نژدي وو ځيني سکته وکړي. ما ته د دوی په خندا داسې خندا راغله چې بې اختياره له شا له خوا رغ را څخه وشو او تښتيدم.
پیلمرغ چې لا تر اوسه يې پزه پر مځکه کښله سر را پورته کړ او د يوه اوږده ټوخي وروسته يې وويل:
دا ښه کار نه دی چې د سرکس فضا دي ککړه کړه دا لوشه ( خاصيت ) دي انساني ګڼم.نورو ژويو هم د پیلمرغ دا خبره تاييد کړه .
نولی ( موشخرما ) وويل:
دا ماته لا ترمخه خاینه برېښيده ځکه له انسانانو سره ډيره راشه درشه لري او هر وخت لکۍ ورته ښوروي ان وايي ځيني خلک هغه په کورو کې ساتي!
سپي د دي په خاطر چې دی هم را ښکيل نه شي موضوع يې بلي خواته واړوله او ويې ويل:
دې اشرف المخلوقاتو خپل د کمون اوليه ژوند هير کړی دی دا ټوله د بيزو له لاسه!
ټولو ځناورو بيزو ته بد بد وکتل .
بيزو په غوسه سپي ته وويل:ما څه کړی دي!
سپي ورو ورته وويل:
ولې داروين درواغجن درته ښکاري ؟
بيزو سر وګراوه او ويې ويل: خير يوه ګناه مو نيکونو وکړه !
او د دستر خوان له يوې خوا نه يې ټوپ کړ او له خندا تکه شنه شوه او ويې ويل:
دا ځوانان مو ليدلي دي چې د نوي پټلانه پايڅې پرې کړي اوبيايې واغوندي او ځينې انجونې بيا د پټلانه يو نا مناسب ځای سوری کړي او د ځينو بيا پټلونونه په پښوکې
پراته وي او څوک چې ورته وګوري ګنهکاره کيږي ، ځيني بيا دومره تنګ پټلون اغوندي چې توبه ،توبه چې زه ورته وګورم چې لا حيوان يم سترګې مې شرميږي خو ژر خپلي سترګې خلاصې کړم او د خپلي ګرانې بيزو کۍ ياني ستاسو وريندارې سترګې ور بندي کړم چې خداې مه کړه هغه لکه ځيني انسانان بد لاري نه شي .
پيشو د بيزو خبرې پرې کړې او ويې ويل:
- دا خوی دي هم انساني دی ته هم غواړي د ژويو نوم بد کړي ،ته هم د هغو په خبرو اوړه اخښې ، تا د هغو ی څخه زده کړي دي .
شتر مرغ چې د وزر لاندي دکوم شي پسې ګرځيدی سر راپورته کړ او ويې ويل:
- که موږ په سر کس کښې يو بل خطا باسو يا په ځان او جهان د يو بد نيت سري اکټ وکړو بيا دا انسانان د خندا شنه شنه کيږي او د ځان سره وايي: د غو ژويو دا ښه خويونه له موږ څخه زده کړي ، بلا کوي ، بلاکوي.
يږ سر وګراوه او ويې ويل:
-دوی ځکه خاندي چې نورحيوانات د انسانانو په نوم و شرميږي ، نو ځانونو ته تسل ورکوي چې دا کارونه خو ژوي هم کوي ، بيايې په خندا خندا مخ زمري ته واړوه او ويې ويل:
- په ياد مو دي . هغه ورځ چې دوو انسانانو لکه موږ يو پر بل بريدونه کول يو بل يې په وينو سره کړي وو. نوموږ هم زموږ د کرو په پښو کولو څومره وخندله.
بيزو ته چې دا د انسانانو يو بل خپه کول او پرې دانګل ور په ياد شول ، د خندا له زوره يې پوخ وهه او د هغو د پښو په کولو يې ټول ناست ژوي په خندا کړل .
وزې په خندا خندا وويل:
-هغه ورځ مو په ياد ده ، چې هغه سړي ډوډۍ خوړله او په ډکه خوله يې خبري کولې د ډوډۍ بڅرکې يې له خولې دېخوا هاخوا شندل کيدل.
هو. هو خندا داسې زور واخيست چې د خره هنګا چې دوی يې بهر غوښتل وا نه وريدل شوه چې خندا لږ ورو شول بيزو بيا د هغه سړي پېښې وکړې چې په ډکه خوله يې خبرې کولې او ويل يې ګوري ماښام دی ( ګولې مه شام دی ).
د بيزو په ليدو بيا ټوله ژوي په خندا شول. آس د خندا له زوره لوټکي وهلې او د او بو زمري بيا له خندا له زوره چکچکې کولې ، د زرافې ګوله په ستوني کې بنده شوه او سترګې يې راوتلې وې او چونګښې ډوډۍ په ساه وواهله په دي وخت کې خر را ننوت او هک پک پاته شو نه پوهيده چې لومړي وخاندي او که خبره وپوښتي خو دا يې غوره وګڼله چې لومړي وخاندي او هغه و چې خر هم د خندا له زوره لوټکي پيل کړې نورو ژويو چې د خره لوټکي وليدلي لا يې خندا زور واخيست .ګيدړي خپله لکۍ وښوروله او ويې ويل:

-هغه هلکان مو لیدلي چې انجونو ته خپله لکۍ ښوروي هیڅ چا ونه خندله خو خره بیا لوټکي کړي د یوي اوږدې خنداوروسته یې په خندا خندا وویل:
دا څکه هلکانوکوځۍ پریښي او انجونو سرونه خرییلي دي! یو وار بیا ټول ژوي بیله خره په خندا شول او خره چې خپله د خندا ونډه بشپړه کړي وه نو خوراک یې پیل کړ خندا هغه وخت بیا زور واخیست چې خره هغه خواړه چې چونګښې هغه په ساه وهلي وه په مزه مزه بېله پوښتنې خوړل پیل کړل. چا د خندا له زوره لوټکي وهلې او چا خپلي بډوډي ټینګي نیولي وې. خو پیل لارغه لارغه( وقفه یې توګه) خندل څکه بواسیر یې درلود او زمري یوازي موسکا کوله څکه په دې ورستیو وختونو کې دزړه په ناروغي اخته شوي وو او ویرېدي چې خداي نا خواسته سکته ونه کړي .
سورلنډي( شغال) هم لږ خندل څکه هغه سوزاک شوي وو او پیلمرغ ته دډیري خندا ټوخی ورغلی وو ،شرمښکۍ د ډیري خندا ځان لوند کړی وو ،پسه ته د ډیري خندا ژړا ورغلي وه او زار زار یې ژړل ،زرافه مرض خرابه کړي وه خپله غاړه یې د مځکې او چت سره جنګوله خو اوښ بیا خپله غاړه ښې او کیڼې لوري له مځکي واهله او پیشو له ویري ژر بهر ووتله. چې امنیت راغي. خره د ډیره خوراک څخه یو لوړ ټیغ ویست چې په اوریدو یې یو وار بیا د خندا انګازی د سرکس فضا ولړزول بیا لوټکي او پورته غورځیدل پیل شوه په دې ترڅ کې دوې کاسې او درې ګیلاسونه مات شول .چا بډوډي ټینګ نیولي وه ، چا په خوله چا په زړه او چا تر شا لاس نیولی وو. پیلمرغ وټوخل او په لوړ ږغ یې وویل:
- شرم وکړي تاسو هم لکه ځیني انسانان د ناستي پاستي ادب هیر کړي دي د ګاونډي د جوړ او ناجوړ خیال نه ساتي هرهر خاندی ، ټول چوپ شول خو خره چې تر اوسه چوپ وو یو وار بیا کټ کټ په خندا شو. پیلمرغ په غوسه ورته وویل :ته خو بیخي په شرم نه پوهیږي زه ستا ډیر خویونه انساني ګڼم
لکه په اور چې اوبه واچوې خر چوپ شو څکه دا خبره په ژویو کې ډیر بد ګڼل کیدل.
تاووس چې د خندا له زوره یې ځان ببر کړی وو وریږدیدی او ځان یې را ټول کړ او ویې ویل:
موږ ته دا خویونه د سرکس امر را زده کړي دي چې د انسانانو کړه وړه تر سره کړو چې انسانان پرې وخاندي خو ځینو انسانانو ته د ژویو کړه وړه چا ورزده کړي دي ؟
پینکوین چې سینه سینه کیدی کرار د راز په ټوګه یې دېخوا هاخوا وکتله او ټولو ته یې اشاره وکړه چې ده ته ور وړاندي شي او ورویې وویل:
-اوریدلي مې دي چې د امازون په ځنګلونو کې ژویو د خپلي خوشالۍ د پاره یو بیخ کس جوړ کړی او هلته انسانانو ته د ژویو کړه وړه ور زده کوي چې ژوي وخندوي!
ژویو یو بل ته سره وکتل او پینکوین ګوته په چولې خوله ونیوله او د تېښ په ویلوسره خپلو ځایونو ته خپاره شول.
د دې نه وروسته دسرکس ژویو د هغه انسانانو په لیدو چې له یو بل نه اوریدل او خبرې به یې کولې ، بې سته او اجازې به په خوړو شول ، په څلوروبه رهي وه ،په ژوند کې به یې رښتیا نه ویل او ویل به یې زما د درواغو نه بد راځي. په لوړ ږغ به یې خبرې کولې...
نو د تېښ په ویلو به یې نورو ژویو ته په پسخند ویل:
- امازون( یاني له امازون څخه را غلی دی )
هغه بل به ښه ور ته وکتل نو د تایید په ټوګه به یې ځواب ورکړ :
پوه شوم امازون!

لندن۱۳۹۸

# زما ولاکه زده کیږي

دوه تنه چې تر اوږدې لمنې لاندي یې پایڅې نه ښکاریدې تا به ویل چې بیخي یې پرتوګونه نه دي اغوستي اود غوړو اوږدو څڼو له منځه یې په رنجو توري سترګې سمي نه ښکاریدې د چوټو ونډې (تسمې) یې خلاصي وې اوله نشې ځنګیدل په یوه سلا کومندانی ته ننوتل او نیغ نیغ ودریدل

کومندان صیب چې پر دوو ګوتو چلم ته ناست و و او چرس یې تاوول او خمار وو په ډیر ربړ یې د سترګو له کونجو نه وکتل ، راغلو دو تنو چې بې حرکته ولاړ وو پښې له مځکې ووهلې او سلام صیب په ویلو سره یې د ښي لاسونوشاوي پر تندي ونیولي ( د عسکري سلام په خیر )

دي سلامي بولندوي(کومندان ) صیب ته خورا خوند ورکړ نو د زړه له کومي یې له خولې ووتل:

ښه راغلاست! تاسو مي اوس جګتورنان کړاست بله میاشت مو هغه بل شی کوم چې زما یې ولاکه نوم زده کیږي!

ولاړو جګتورنانو په یوه ږغ وویل:

خدای دي غم مه راکوه باداره!

دواړو په خوشالۍ له کومنداني ووتل او نورو انډیوالانو ته یې ویل:

موږ جګتورنان شو او بله میاشت هغه بل شي کیږو زیاته.

او بې ډوله په نڅاه شول

کندهار ۱۹۹۴

# وړاندوینه

له نویو کمپوتري وسیلو سره د جرایمو د مخنیوي تر نامه لاندي ۱۵۴ هیوادو د پولیسو نړیوال کنفرانس د چورلند په مرکز ډاکو اباد کې جوړ شو او په دې چې د کوم هیواد پولیس د غلا تر پیښې و روسته خبریږي خبرې اترې او تجربې سره ردوبدل کېدې داسي هیوادونه هم وو چې د پولیسو بودجه د غلو له خوا ورکیده او داسي هیوادونه هم وو چې یو کال وروسته په سلسله مراتب په غلا خبریدل . خو پېنځه هیوادونه په رومبي لیکه راغلل یو یې روس وو چې د غلا د پیښې شخه دوې ورځي او دوه ګړۍ او یوه دقیقه وروسته خبریدل ، بل امریکا وه چې شل دقیقې او دوې ثانیې وروسته خبریدل دریېم هیواد جرمني و چې لس دقیقې او شل ثانیې وروسته خبریدل او څلورم جاپان چې د پېښې وروسته سمدستي خبریدل خو دی پر مخ تګ ته چې د پاکستان پولیس درې ورځي مخکې نه یوازي د غلا له پېښې شخه خبر وو بلکي د غلا ارزښت او وخت هم ورته څرګند وو تول هک پک کړل او دایې لوی پر مختګ وګانه نو د کنفرانس لومړۍ افتخاري مدال یې و پاکستاني پلیسو ته ورکړ

کراچي ۱۹۹۷

# د ځغاستي ملي سيالي

د کراچي له سهراب ګوټ څخه ترمهاجر کمپ پوري د پينځه سوه کيلو متري له خنډ ه سره د ځغاستې يوه سيالۍ وه.

ږومبی تن يو افغان و چې له ډيرو منډو په خولولوند خېښت و او سا يې له ستړيا بنده بنده کيده په ترس او لرز يې وويل:

(کيسه بر را پسې دی) تر ټاکلي ليکې تير شو ږومبی دريځ يې وګټه.

خلکو او د لوبې مينه والو په چکچکو د هغه هرکلی وکړ. لس- پنځلس ثانيې وروسته يو کيسه بر په داسي حال کې چې يو وار وار يې تر شا هم کتله په وارختايې ويل: پوليس را پسې دی او ما لا دستلاپ نه دی کړی په ويلو له ټاکلي ليکې تير شو او دويم پوړ ( مقام) يې وګټه.

حاضرينو په چکچکو بدرګه کړ . اود دربيم اتل لپاره يې سترګې سړک ته نيولي وې چې يو پوليس ليکې ته راورسيد(چاي پانې دو) په ويلو له ليکې تير شو د لوبې مينه وال هم د دربيم ګډون کوونکي په ليدو د ځغاستې په سيالۍ کې و ر ګډ شول

کراچي ۱۹۹۷ ،

# تک ډم ډم تک ...

سلام جان ټوله ورځ له دې دوتره(دفتر) هغه دوتر ته ، له دې وزارت نه هغه وزارت ته ، له دې کوڅې هغې بلې کوڅې ته ډول(ډوهل) پر غاړه او لرګی په لاس ګرځېده را ګرځېده خو هیچا د ډول ږغ ترې نه وو اوریدلی...

هر دوتر ته چې ورشي د مامورینو خولې له خوشالۍ ویتي پاته شي چې وړیا میله ده.

خو سلام جان دېخوا هاخوا وګوري سر وښوروي او ببله دې چې لرګی ډول ته وروړي ، تندی یې کونځې کونځې شي او په غوسه له هغه دوتره راووځي او په بېړه بل دوتر ته ورشي له هغه هم همداسې بل ته...

د دوترو خلک هم د ډول د ږغ په ارمان کې پرېږدي. زه چې ډېر د اتڼ شوقي یم ، نوکله چې سلام جان ووینم و اتڼ ته مې هوا وشي اوبې اختیاره مې وړې په ښوریدو شي ، خو هغه ډول نه وهي

. نن مې سل زړونه یو کړل او پوښتنه مې ځیني وکړه:

- سلام جانه! دا ډول ولي نه ږغوې ؟

سلام جان سترګې چوخې او تندی ګونځې کړ

او د یوه ستر راز په څیر یې ورو راته وویل:

- دا ډول هغه وخت وهم چې کار د کاروړ( اهل) ته وسپارل شي!

ما ترې په تعجب وپوښتل:

- ولي اوس کار د کار وړ ته نه دی سپارل شوی ؟

سلام جان ورو خپله خوله زما غوږ ته را نژدې کړه په داسې حال کې چې لاس یې د خولې له پاسه نیولی وو او سترګې یې رډې رډې راوتلي وې ، دېخوا هاخوا ته یې په ځیر ځیر کتل ،په وزن سره وویل:

بیسواده پر څوکیو قرعه کشي کا
باسواده له بیکاري روز مزدوري کا
توپک سالاران د خلکو هدایت کا
پوهان له مجبوریت هجرت کا
ما په خوله ورسره د ډول نغمه واهله او سر مې ورسره ښوراوه:

تک ډم ډم تک ، ډم ډم تک ،ډم ډم تک ډم ډم....

لندن۱۹۹۹

# کشتي کج

د پړانګ او ملخ تر منځ د کج غېږه نيولو و روستی وار (رونډ) پيل شو ټولو دا سوچ کاوه چې پړانګ ګټونکی دی نو له هم دې کبله به د پړانګ په هر غورځنګ د چکچکو ږغونه فضا ډکه کړه . پړانګ چې برا(حريف) يې ډير ناتوانه ګڼه نو پر له پسې ټوپونه يې په ملخ پسې وهل چې ژر يې تر پښولاندي کړي . پړانګ دومره ټوپونه ووهل چې له ستړيا نه ستونې ستغ اوږد اوږد وغځيد.

ملخ هم ټوپ کړل او پر تندي يې کيناست او د اتلانو جام يې وګټه .ځکه يو ټوپ يې پر سول ( عقل ) برابر سم او بې ښاځ( غرورّ) ووهه

لندن١٩٩٨

# خوش خدمتي

يو ښکلي ځوان افغان د ختيزو او لويديزو هيوادو له ځوانانو څخه د ښکلا او ميړانې سيالۍ وګټله خويو پنجابي دغه سيالۍ له دي افغان ځوان څخه وګټله.

دا څرنګه ؟

ځکه وروستي حکم (ريفري) په پاکستان کې اوسېدلی يو افغان رهبر وو.

کندهار۱۹۹۶

# مننه

ښوروا ورو وپټا ټو ته چې د میلمنو په  ورځ یې مرستې ته راغلی وو وویل:

مننه!

پټاټو په یوه ترخه او شکمنه موسکا ځواب ورکړ:

هو ولا!

که د انسانانو له قصاب څخه وپوښتی چې ته هم ښه سړی یې همداسې نه ده ؟

هغه هرو مرو د پټاټو ځواب ورکوي

هو ولا! د انسان خدمت فرض دی (په خندا ډوله موسکا)

لندن ۱۹۹۹

# پنچر مین

طالب:ولي دي ږيره خرېيلي ده ؟

لاروی: صیب زه پنچر مین یم

طالب: وبښه ،

خو اوس هغوی پوهیږي پام وکه چې بې مین دي نه کړی!

کندهار۱۹۹۵

# توپکيان

يو چرسي بل ته په خندا خندا او خوشالۍ زيری  ورکړ:

هغه دي بيا توپکيان راغلل!!!

دويم چرسي له خوشالۍ په ترپکو شو او نارې يې کړې:

وا وا د مور شيدې کندهار اوس کندهار شو

لندن ۱۹۹۸

# وزې ته ښکنځل وکړه!

دلته ملا د حجرې مخې ته ولاړ وو او ډول وهونکی ته یې بد او رد ویل. هلته یو مسافر ناست  و او شلومبې اووچه ډوډۍ یې خوړل او په دې چورت کې و چې هر چیري چې ورشم همدا شلومبې دي ، تروې دي ، شناوې...

مسافر په عالمانه توګه ملا ته وویل:

-ملاصیب! ډول والا ته څه مه وایه وزې ته ښکنځل کوه که دا نه وای دنیا به سمه وای!

نه به ډول وای ،نه به شلومبې وای

اوس باید وزې ته ښکنځل وکړو :چا یې ډول ، چا یې شلومبې ، چا یې ږیره ، چا یې غولانځه او چا یې لا لکۍ ټینګه نیولې ده

کندهار۱۹۹۷

# دا بي بي سي لندن دی!

د چونګښو په یوه ډنډ کې آوازه خپره شوه چې د مار او موش خرما تر منځ جګړه شوی ده او په ترخ کې یې تور مار مړ شوی دی. د دې آوازې په رسیدو سره په ډنډ کې اتڼونه ، نڅاه ګاني پیل شوې . نجونو او ښځو لاسونه او پښې په نکریزو سره کړه او ټولو لکه اختر چې وي نوي کالي واغوستل او یو بل ته یې تبریکي ویل پیل شوه ځکه له تور مار نه چونګښې ډیري په تنګ وې او هره ورځ به یې دوه — درې ژوندی تیرولې ،نو د مشرانو د مشورې په اساس موشخرما ته سوغاتونه برابر شول او څو چونګښو ته دنده ورکړل شوه ، هغو دا ډالۍ پر سرو واخېستې او له ډم او ډول سره لکه ورا چې د ناوې پسې ځي د موشخرما د غار خواته رهي شول د موشخرما وه غار ته له رسیدو سره سم

د ژوندی دي وي زموږ ټولمنلي درناب موشخرما !

کامیابه او سر لوړه دي وي موشخرما!

مړ او ورک دي وي تک تور مار!

نارې او شعارونه یو د بل پسې په انقلابي ولولو بدرګه کېدې ، خو له غاره د موش خرما پر ځای تک تور مار راووت او د غار مخي ته یې لټکه( کفچه ) ووهله.

د مار په لیدو چونګښې لړ وارختا او تر شا شوې ، یوه ځوانه چونګښه چې د آزادو رسنیو د قانون په ارزښت ښه پوه وه لږ څه مار ته نژدې شوه او ویې ویل:

داسي آوازې دي او ډیرو رادیو ګانو یې هم پخلی کړي چې په جنګ کې ته که موشخرما مړ شوی یاست! نو هغه چې مړ شوی دی هغه خو به تاسو نه یاست؟

نورو چونګښو خپل دوه غوږونه دوه سوه کړي وو او په شکمنو سترګو یې یو بل ته کتل او دګوندي تور مار مړ وي دعاو ي یې کولې. خو تور مار نارمي ( سر ټنبه ګي ) کوله او هم دا یې ویل:

- ما موشخرما مړه کړه!

دوه — درې نورې چونګښې د شاهدانو په توګه را مخې ته شوې ، هغوی شاهدي ورکړه چې بي بي سي هم دا خبر تایید کړی دی ، نو څرنګه وایې چې ته نه یې مړ!؟

یوې پېغلې احساساتي چونګښې نارې کړې : نوهرو مرو مار مړ دی !

یوه بله سپین سرې چونګښې کرار مار ته نژدې شوه او په شک سره یې مار ته څیر څیر وکتل او په اسویلي سره یې وپوښتل:

— رښتیا ووایه ! موږ ستا اوریدلي دي ؟ په زاریو او ننواتو یې ما ر ته و ژړل:

— ګوره موږ ستا اوریدلي دي !

مار له ډیري غوسې پښهار شواو په غوسه یې سر له مځکې وواهه . مار چې سر راپورته کړ هغه نژدې چونګښو ضعف کړي وو او نوری په منډه وې . یوه زړه چونګښه چې نشه وه په سختې سره یې خپلې ستر ګې پرانیستې او ویې ویل:

- ما چې په عمر در واغ نه دي ویلي قسم خورم چې ته مړ یې ولا...!

ددې رښتیا ویونکي چونګښې په قسم سره د تښتیدولو چونګښو زړونه ډاډه شول او بیرته راستنې شوې د ببسده شوو چونګښو پر مخونو یې اوبه وشیندلې او بیا یې سنګر ونیوی . مار له دوی د سنګر نیولو نه لړ وارختا شو نرۍ خولې یې پر تندې را ماتې شوې او په ژراند ږغ یې وویل :

- لکه چې ما نه وینی ؟

یوې متقاعدې وزیرې چونګښې له لیرې نه ږغ کړل:

ته ښه سوچ وکړه ګوره ته به مړ یې موږ ستا اقرار غواړو !

تور مار له غوسې تک سور شوی وو غوښتل یې دا پخوانی وزیره ژوندی تیره کړي خو د بهرنیو خبریالانو په لیدو چې سند پرې ونه مومي چې ګواکې دی پر چونګښو زیاتی کوي ،نو تر دې کاره تیر شو ،چې د مجرمینو نړیوالي محکمې ته یې ور ونه پیژني. په اخیر کې یوې ډلې چونګښو د دریو سره غزلي ویلي :

الله شاکوکو جان موږ ستا اوریدلي دي که یې مني که یې نه مني ؟ ....

او اوقیان د فیصلې له پاره مخې ته ولاړ وه

یوه بله چونګښه مار ته نژدې شوه هغې غوښتل تور مار د مړ شوي مار له عکس سره پرتله کړي خو دا هم په ناپامي کې د مار لخوا تیره شوه دا هم چا ونه لیده
نوري چونګښې په خپل منځ کې په خبرو اخته وې چا ویل مړ دی! چا ویل نه دی مړ! چا ، چا بیا ویل که مړ دی نو دا بیا څوک دی !
د یو بل د بسیاینې په پار چا قسمونه اخېستل او چا لاسونه ښورول او شرطونه یې تړل. یوه کورناستې چونګښه چې د بلې چونګښې پر وړه سپره وه په لوړ ږغ یې نارې وهلې:
دا مار نه دی ! که مار وای تر اوسه به یې دوه درې ژوندی تیري کړی وای!؟
د مار چې خیټه یې پړسیدلې وه د خبر یالانو د ډار نه ونې ته وخت او ځان یې تر ونې را تاو کړ یو تریخ تېغ یې ویست.
هغه ځواني خبریالې چې دا د بي بي سي خبر یې ثبت کړی وو راغله پر چونګښو خوشالۍ ګډه شوه او په یوه سوبناکه ږغ یې نارې کړې :
ودي لیدل زموږ دي نه منل نو ر نو سر تمبه ګي پریږده او ومنه چې مړ یې!!!!
چونګښو د ګوتنیوي په توګه یو بل ته لاسونه ښورول ګوره مړ دی خو دی ناځوانه یې نه مني
ځوانه چونګښه چې ډیره راپاریدلې وه نو په ښېړه یې ټیپ ولګاوه:
دا بي بي سي لندن دی ، نړۍ دا وخت
.. د زاړه ډم تر څنګ د موشخرما او تور مار تر منځ یوه خونړۍ جګړه پرون په دو بجو پیل شوه چې په هغه کې سپکې او درنې وسلې وکاریدلې او تر درو ګریو وروسته تور مار ترې تم او موشخرما یې غار په خپله ولکه کې راوست دا خبرآزادو منابعو هم تایید کړي دي. ټولو چکچکي وکړې او په یوه ږغ یې وویل:
- ودي لیدل!!!!
تور مار چې دا خبر واورید نو بسیا شو او پر مځکه ولویید ،
نورو چونګښو د ځوانې چونګښې شعارونه په یوه ږغ بدرګه کاوه:
ژوندي دي وي بي بي سي !
- ژوندي دي وي
او د موش خرما ډالۍ یې د بي بي سي هغه خبر نګار ته چې دا خبر یې ورکړی وو واستوله

لندن۱۹۹۹

# ښکروره تاریخي بد نامي

سورلنډی (چغال) په ډیره ربړ سره یوه چرګه له کلي وتښتوله د کور میرمني واویلا جوړه کړه:

هو خلکو! سورلنډي زما یو نیم چارک د هګۍ چرګه یوړه...

هلې د خدای دپاره...

سورلنډي چې دا نارې سورې واوریدې نو و درید چرګه یې دوه —درې واري کښته پورته کړه خو هغه تر یو پاو زیاته نه وه او چې یې ښه ورته وکتل د هګۍ چرګه هم نه وه بلکې چرګ و نو په پښېماني بیرته را ستون او کلي خوا ته رهي شو په لارکې ګیدړې ولید او رغ یې پر وکړ:

ځه تښته! د کلي خلک در پسې راوتلي دي. سورلنډي ورته وویل:

ته دا نارې او دا ښکروره درواغ نه اورې وایي یو چارک د هګیو چرګه...

لاهولا...دا دومره غټ د رواغ. زه ځم دا دوراغ رسوا کوم !

دګیدړې د دې کوچنی چرګ په لیدو نارې د خولې وبهیدلې په مات مخي یې سورلنډي ته وویل:

ساده سړیه!ما ته یې راکړه! زما په دوه چارکه منلې ده!

سورلنډي چرګه ګیدړې ته ورکړه او له توره یې ځان وژغوره او په ارامه وجدان د خپل غار خواته رهي شو او ګیدړې هم نیم پاو چرګ په دوه چارکه ومانه خو د کور د میرمني یو یونیم چارک او د سورلنډي دوه چارکه احسان ور باندي شو . ګیدړې لا په خوړو پیل نه و کړی چې د کلي سپیان پسې راورسیدل او دومره یې وځغلوله چې درې چارکه یې تول( وزن) بایلې.

لندن ۲۰۰۲

# چونګ چونګ د فتح خان

د نړۍ د فیلوسفانو لومړۍ کنګره په ۱۹۹۸ کال کښې د ماکانا په تاریخي ښار کې جوړه شوه چې له ۱۴۵ هیوادونه ۱۹۵ تنو فیلوسفانو په کې ګډون کړي وو.

لومړی ځل وو چې داسې یوه ارزښتمنه غونډه جوړ ېده چې هلته د پوهې خبري کېدې د دې کنګرې بهیر د سپوږمکۍ له خوا خپریده خو خلک د کریکټ د لوبې پر کتلو بوخت ول چې پر همدغه ورځ پیل کېده . په پرانېستوني (افتتاحه) غونډې کې د ماکاتا د شار د خاورو خځلو ( تنظیفاتو ) رییس چې فیلوسفانه څیره یې درلوده د لوړو چارواکوپه استازیتوب داسې وویل:

ډېرو پوهو او د چینې د اوبو په څیر پاکو فیلوسفانو! زموږ د ښه آب و هوا ښار ته ښه راغلاست. زه د چارواکو په استازي چې ټول د کریکټ لوبې ته تللي او زه یې چې د کریکټ سخت لیوال یم جبراً ستاسو چوپړ ته را لیږلی یم نو دا غونډه رسماً پیل وم.

د خاورو خځلو رییس د لږ چورت وروسته داسي اوږده کړه:

که څه هم موږ هم فیلوسفان یو او ډیر ښه د عقل کارونه مو کړي دي لکه د کانالیزسیون او ښباک اوبوتر مځکې لاندي کانالونه سره ګډ شوي دي موږ له عقله کار واخېست او خلک مو په دې اوبو چې له ویتامینو ډکې دي روږدي ( اموخته ) کړي دي . فیلوسفانوژر د اوبو ګېلاسونه له مخي لیري کړل

بیایې له لږ چورت وروسته سره وګراوه او داسي یې پسې وغځوله:

د ښار د خځلو ټولول ډېر سخت او ګران کار دی خو اوس مو د عقل نه کار اخیستی دی.پرېږدو چې هغه وچ شي بیا باد هغه په ناپایه تشیال( لایتناهي فضا ) کښې ورکوي ( دبریالیتوب یوه خندا یې وکړه )

فیلوسفانوژر ماسکونه راویستله او خپلي پز ې یې وتړلې..

بیا یې لږ چورت وواهه او سر یې وګراوه او زیاته یې کړه موږ د عقل نه کار اخېستی دی د پکوالي درمل مو پیدا کړی:

فیلوسفانوژرقلمونه او کتابچې راویستلې.

. دي خولۍ ته ګورئ! د خولۍ په سر کولوسره هیڅ څوک نه پوهېږي چې څوک پک او څوک نه دی او بیایې یوه سوبمنه خندا وکړه

فیلوسفانوژرقلمونه او کتابچې له مخي لیری کړل

دی لا په همدې چورت کې وو او سر یې لا نه وو ګرولی چې د فیلوسفانو د پر له پسې چکچکو په زور یې د خطابې له میزه لیري کړ. یو فیلسوف جګ شو او د اعتراض په ټوکه یې وویل:

کوربه هیواد دا حق نه لري زموږ وخت په اوتو بوتو ضایع کړي نورو هم دا وړاندیز ورسره تایید کړی.

د پرانیستوني وینا وروسته د کنګرې اصلي موضوع د فیلوسفانو د د کار پایله( نتجه ) وه چې هریوه دیرش-پنځوس کاله زیار ګاللی ملي او نړیوالي پېښې یې څیرلي او سپړلي او د عقل خبرې یې را بر سیره کړي دي نړیوالو ته د دي خبرو ډاګیزول او رسول پیل کړل.

لومړی د امریکا لوی فیلسوف مستر جان مان براون بلک وایت داسي خپله د عقل خبره وکړه :

خپل راز پټ ساته چا ته یې مه وایه !

موږ د عقل خبره را برسیره ( کشف ) کړی اوعملي کړي ده موږ هر ډول درسته( سلاح ) جوړه کړې ده. خو چا ته نه وایو. خو نور هیوادونه که د یوې ګولۍ ( مرمۍ ) انځور هم وباسي بیا نو احساساتي شي او اعلان وکړي ! موږ پیدا کړه!

او هغه دی چې د ملګرو ملیتو د امنیت شورا استازي هغه هیواد د ستوني نیسي او انځو ر یې ور ښیري کوي.

د امریکا د فیلسوف خبره په چکچکو سره تایید شوه ، تر چکچکو و روسته ږغونه اویوه همهمه پورته شوه. د غونډې مشر وپوښتل :

څوک څه ویل غواړي ؟

یو فیلسوف وړاندیز وکړ چې ښاغلي فیلسوفان باید یوازې خپله د عقل خبره وکړي سرباري څرګندونو ته اړتیا نشته ځکه دلته ټول فیلسوفان دي په موخه(مقصد) پوهیږي نورو هم دا وړاندیز تایید کړ.

بیا د روس فیلسوف پروفیسر یوري ګوري یوف پوف د تربیون شا ته راغی او خپل د عقل خبره یې چې د دیرشو کلنو ازموښتنو په پایله کې یې را برسیره کړې وه داسي څرګنده کړه:

یا خپله زمری شه کنه یا د بل د درګا سپی شه کنه!

د پوف د عقل خبره په پر له پسې چکچکو تایید شوه.

او وا وا بیا ووایه ږغونه پورته کیده

نو پوف بیرته دا د عقل خبره را غبرګه کړه:

خپله زمری شه کنه یا د بل د درګا سپی شه کنه!

په دویمه ورځ لومړی د جاپان فیلسوف پروفیسر پان چوانګ چان چین چونګ خپل د عقل خبره داسي څرګنده کړه :

و چا ته په هغه سترګو ګوره چې دی نه چې وو!

موږ اوس هغه پخوانی...

په پر پسې چکچکو یې په سر باري څرکندونو څخه یې لاس پر سرکړ او ټولو دا د عقل خبره په یو ږغ را غبرګه کړه :

و هرچا ته په هغه سترګو ګوره چې دی نه چې وو.

وروسته د جرمني پروفیسر هال بال شمیت کورت د تربیون شا ته ودرید او تر یو لنډ ټوخي وروسته یې خپل د عقل خبره داسي څرګنده کړه :

هر کار چې کوې مزد یې لومړی جوت کړه!

په واه واه سره دا د عقل خبره تایید شوه

د فیلوسفانو مخې ته ځانګړي غوزی ( مخصوصي ګوشکۍ ) چې د هر وینا وال خبرې یې په هم مهاله په ۱۵۴ ژوبو ژباړلې . خوځنګه چې ټول سره پوهیدل د غوږیو نه دومره کار نه اخیستل کیده.

د نورو هیوادو فیلوسفانو هم په خپل وار سره د عقل خبرې وکړې چې دومره په زړه پورې نه وې. چې همدا د افغانستان د فیلسوف وار راورسېد هغه د خپل نوم په اوږدولو بوخت وو چې نور فیلوسفان ګومان ونه کړي چې دی فیلسوف نه دی

نو الحاج پروفیسر پوهاند ډاکټر ماستر جان ګل جان خان قربان صاحب اخوند بیکار د پنځوس کلنو را بر سیره ( کشف ) کړې خبره داسې د نړیوالو غوږوته ورسوله:

که غواړې چې هوسا شې اې افغانه! کور پسې ایله که . وطن پسې ایله که ،خپلوان پسې ایله که ، د کور سامان پسې ایله که ، چې څه لرې هغه ټول شیان پسې ایله که ، چونګ چونګ د فتح خان ( دا ټوله یې په یوه سا داسې وویل چې سترګې یې رډې راوتلې وې).

د چکچکو داسې پر له پسې شړپ شو تا به ویل چې سواره نظام پوځیان را روان دي او ټول فیلوسفان ودریدل او خپلې خولۍ یې پورته پورته غورځولې:

واه واه بیایې ووایه!

که غواړې ...

بیا ټول فیلوسفان نیغ ودریدل او لکه کورس تکراروله یې

که غواړې ...

د جاپان ،چین او کوریا فیلوسفان د چونګ چونګ په اوریدو په نڅاه شول او خپلې ملي نڅاه ګانې یې پیل کړې

دا د عقل خبره دټولو له خوا تایید او تر ټولو غوره د عقل خبره وګڼل شوه او جایزه یې و ګټله .

په جایزه کې پروفیسر بیکار ته د امریکا ویزه او د الوتکې ټکټ ورکول شو

پروفیسر بیکارچې د اجنت له شره خلاص شوی وو په داسې حال کې چې د سترګو یې د خوشالۍ اوښکې تویېدې ویزه او ټکټ مچ کړه او ښله دې چې د غونډې تر پایه پاته شي خپل لاسي بکس یې واخېست او د لاسو په ښورولو په منډه د بای بای په ویلو له تالاره ووت او سیده هوایي ډګر ته ولاړ.

اندونشیا۱۹۹۶

# کمپوټري مشر

د راډیو څخه مې د نوي حکومت د غړو لو نوي مشر نومونه واوریدل او په همدې سوچونو کې ویده شوم او ګډوډ خوب مې ولید چې یو ستانه(روحاني) شخصیت ته وایم چې ته دا زموږ د نوي کابینې وزیران پیژنې څرنګه خلک دي ؟

د تجارت راکړې ورکړې وزیر څرنګه سړی دی ؟

هغه راته وویل: هغه یو لوی او مشهور قمار باز دی!

زما د خولې نه د هو! هېښنده ږغ را پورته شو

دا د کورنیو چارو د کش او ګیر وزیر ؟

هغه یو نومور غل او قاچاقبر دی!

زما د خولې بیا د هو هېښنده ږغ ووت.

او دا دمالیې د چل او ول وزیر ؟

هغه یو خراباتي سړی دی!

همداسې د نورو ټولو وزیرانو پوښتنه مې ځیني وکړه زما هوو ورسره روان وو په پای کې مې د نوی مشر په اړه پوښتنه ځینې وکړه.

ستانه سر وښوراوه . شونډې یې بوخې کړې او راته یې وویل: دا نه پیژنم ، نه یې پلار څرګند دی نه یې هیواد.... په همدې وخت کې له خوبه راکښیناستم.

سبا ته نابېري د یوې مرکې لپاره د نوی مشر دوتر ورغلم او تر مرکې وروسته مې د خوب کیسه ورته وکړه او ورته مې وویل: چې ستانه راته ویل چې د ده کام او نه پلار او نه هیواد څرګند دي .

مشر په بې توپیري سره موسکی شو او په یوه ترخه خندا یې وویل:

ږغ مه لره رښتیا وایي ټوله په سیاست کې را نه ولاړه ږغ مه لره اوس ماته هم ولاکه څر ګند وي خو دومره پوهیږم چې چیف مې افغاني دی.

دا ځل زما د خولې په ویښه د هوو ږغ پورته شو خو ژر مې پرخوله لاس ونیوی.

لندن ۱۹۹۹

# ټاپه

عجب زمانه وه پر بري ليکونو ، ډيپلومونو ، سه پارچو ، نکاح ليکونو ... رنګارنګ توري ، سرې ا و زرغونې او شنې ټاپې لګول کېدې ان چې پوهنځی مو پای ته ورساوه پر بريليک يې سپينه ټاپه راوواهله ځکه د سپينې ټاپې رنګ لمر نه خرابوی او ډير خوشاله وو ،خبر نه وو چې د زمان په تيريدو سره دا ټاپې بې ارزښته کيږي او ان دهغود پټيدو ځای به نه وی او ټولې پاکيږي نور نو اوس پر اسنادو ټاپې نه بلکي پر خلکو باندي وهل کيږي دا ټاپې د سلو کالو ديندارہ بې دينه کوي او د سلو کلو غل ښخه پير ، د دوښمن ښخه بادار ، له جته ښخه سردار جوړوي

دا اوسنۍ ټاپې په ريموت کنتروليږي يوازي کوف غواړي او چوف که يې نه منې زموږ کلي ته راشه مازي سر پورته که بيا د ټاپې وهل ګوره هر شی چې شوې او هر چيري چې ولاړې !؟

لندن۱۹۹۸

# ددغه دغه

ښاغلو راغلو!

زه له تاسو څخه مننه کوم چې پر ما مو باور و کړ اوزه مو په خپلو رایو خپل استازی وټاکلم . ما لکه مخکې چې ژمنه کړي وه اوس هم په خپله ژمنه ولاړ یم نور ستاسو بادوني ته اړتیا نه لرم .ما د کار پلان جوړ کړ تاسو دا زما اوږد او منظم پلان تر اوسه نه دی لیدلی خیر زه به دا خپل پلان نه یوازي تاسو ته ، بلکې کوچنیانو ، ښځو او زړو ته هم وروښیم

زه خپله دا وینا په دې نارو سره لنډوم:

ژوندی دي وي زما پلان

مړه دي وي ستاسو دوښمنان

زموږ د رییس کټ کټ همدا وینا وه خو تر هغو وییو (کلیمو) لاندي یې چې کرښه را کښل شوې ده ( دغه ) لوستل شوي دي

زه تاسو څخه دغه کوم چې پر ما مو دغه وکړ ....

# پام چونګښه مه یادوه!

سرور د خانو د میرمني پوښتنې ته ورغی چې دا ډیر مهال ناروغه وه او د خبرو په ترڅ کې یې خانو ته ورته وویل:

یاره خانو! اجملي دا دوې میاشتې مخکې ښار ته تللی وو هلته ښه ډانکټر جوړ شوی راغی ، وایې د کوم ډانکټري کورس یې ویلي دی ، لروین(دوربین) پر غاړه ، غټه توره بسته په لاس کې غټووینې سترګې یې ( غټې کټه بیني) پر سترګو ،نازک سپین کفن یې اغوستی او عجب لاس یې دي په یوه اوونۍ کې ناروغ هاخوا یا دېخوا کوي .

ما خپله خوابنې وروستله ، هغې ته یې داسې درمل و رکړه او ورته یې پر هیز هم ورکړ چې د درمل خوړولوپه وخت کې پام چې چونګښه په یاد نه کړي هغې هم لکه چې چونګښه په یاد کړې وه او هاخوا یې کړه .

دا داوس په پکو ډانکټرانو چه جوړه نه ده که ښه وی خپل پک سرونه دي جوړ کړي !

خانو چې په چورت کې تللی وو او له ځانه سره یې تکراروله :په یوه اوونۍ کې دي خوا یا هغه خوا

سرور و رته وویل:

څه درواغ خو نه درته وایم ویې ازمایه اوبیا یې د راز په ټوګه ترې وپوشتل:

-رښتیا د کاله شاوخوا مو چونګښې شته ؟

خانو په خوشالۍ ورته وویل :

هو ډیري دي !

سرور په ټینګار ورته وویل:

- که زما مني ژر یې وروله!!

# ډاکټر صایب کوتان(قوطان)

دړ غ د ککړ تیا ( شوربکت ) څخه د ژغورو دپاره د ځنګله ټولنې د ګاونډیانو په سلا او مشوره و پتیله چې د ګاونډي ځنګله له ازمېښتونو څخه د ګټې اخیستني لپاره ډاکټر صایب کوتان ته بلنه ورکړي

ډاکټر کوتان چې ځانګړي غوړي یې د قبض ، چاغېښت ، هډوکو درد. د ږغ د ککړتیا د مخنیوي لپاره را بر سیره ( کشف ) کړي وه او د غوړولو د ځای له پلوه یې بیلا بیلې ګټې درلودې ، له خپلو نظریاتو سره راغی.

د نوموړي ځنګله به رسنیو ( مطبوعاتو ) کې د دې ځانګړو غوړو اعلانونه پیل شول او د ږغ د ټېټوالي له کبله د کټه کولمې ( مقعد ) غوړول حتمي او اړین امر وګرځید ، او نه کارول یې لوي جرم او ګناه وګڼل شول د دغو نویو را بر سیره شوي غوړو د ږغ په جګوالي او ټیټوالي کې په رښتیا چې اعجاز کاوه .ځکه د کټه کولمې په غوړولو هغه ځواک ( قوه ) چې د ږغ د ایستلو لپاره اړینه وه چې ږغ خپل اصلي غاړه او تون له حنجرې وباسي ضایع کیده. لومړي ددغه کار ازمېښت پر یو کولنګي چرګ چې ډیر بې وخته اذانونه یې کوله وشو د چرګ دکټه کولمې ترغوړولو و روسته چرګ غاړه پورته کړه چې اذان وکړي خو دا قوه به یې له شا له خوا ضایع کیده او اواز یې له خنجرې نه ووت .

ټول ژوي اړ شول په دې فرمان کړه وکړي او خپلي کټه کولمې په دې غوړو غوړ کړي او خپله منندوېې ( فرمانبرداري ) وښیي.

او هغه و چې په دې کار سره د زمرو غور په غول بدل شو.د خره هرهر په ال ال ، د مار پېنهار په پښ پښ... بدل شول د هر ژوي د ژبې د بدلون سره د هغو ارو اصل هم ورک شول.

مخکې به نورو ژوي د زمري له غوره وېرېدل خو اوس یې وربانديي د غول په اوریدو پوزخند واهه اوخندا یې پرې کوله. نور چا د زمري زور و ځواک او واکمني ، د پیلمرغ درایت او عقل مندي ،دپیل درنوالی ، د بلبل غزلبولي... ته ارزښت نه ورکاوه هر ژوي ځان ته نوي پښتونې(شجرې) او تاریخونه جوړ کړل نور نو پړانګانو هوسۍ نه شوه ښکارولای ، کربشا(سنجاب) غوزان نه شوای په خاورو کې پټولای ، سک لاهو د اوبو ډنډونه نه شو جوړولای او...

کرار کرار ځنګل په وچیدو شو او ګل ګل میري او خپل سري شول.

خو په ځنګل مینو ژوو هوډ وکړ چې ځنګل به بېرته جوړي. نو په توره شپه یې ډاکټر صیب کوتان سره له غوړو او نظریاتو له ځنګله نه ورک کړ او دا عادت یې هم ورسره ورک کړ. او دا عادت هم ورو ورو له ځناورو هیر شو.

یو زمری د یوې ډبرې شا ته پروت وو او یوموږک یې پر لکۍ غاښ ورولګوی له درده یې نابېره له خولې غور ووت ، دده دغور سره ټول موږکان له ځنګله نه وتښتیدل او ځنګل یې خوشي کړ ، بیرته بیدیا ته وتښتیدل. د مار د خولې بیرته پښهار راووت ،د خره له خولې هرهر...

جوړي شوي پښتونې ( شجرې ) څیرې شوې او هر یو دخپل کار پسې روان شول.

خر چې د خېټابې میز ته ولاړ وو او خپله عالمانه وینا یې وړاندي کوله میزیې پر شا کړ او خپل اصلي ځای ته یې یووړ

بیرته جم او جوش جوړ شو د چرګانو هوهو ، د بلبلو چوچو ، د پیلانو بوهو اوریدل پیل شول .خو د دې لپاره چې دګاونډي ځنګله اړیکې له دې ځنګله سره ویجاړ نه شي بیا هم دا غوړي یوازي د هغو چرګانو لپاره چې بې وخته اذانونه یې کوله او د هغو خرو لپاره چې د هرهر نه یې نه اوریدل کیږي چې خاندي که ژاړي. واردیدل او په نسخه ورکول کیدل.

لندن ۲۰۰۲

# که زما منې کله کله ګډايې هم کوه!

تورک چې واده ته خبر وو ، پوره یوه ګړی په سره لمر کې ګاډی(بس) ته سترګې پر لار پاتي شو خو د بس ګاډی (سرویس) پته نه وه . تر لږ چورت وروسته یې له سره خولی ایسته کړه وښتان یې جر پر کړل د پتلون یوه پایڅه یې پورته او بله کښته کړه خولی یې کچکول کړه او دتم ځای خلکو ته یې په مات مخي په سندره کې ویل:

- بیچاره یم ناوخته کیږي واده ته نشم رسیدی د خداي په نامه د ټکسي کرایه خو راکړی ته نه نی نی ...

د خلکو غوږونو ته ورغله چې وایي :بیچاره یم واده مې نه دی کړی بې کاره یم مرسته وکړئ چې یو ټکسي رانیسم ته نه نی نی...

نو چا لس چا شل په خولی کې ورواچولې لا نیمایي خلکو ته نه وو رسیدلی چې د پیسو شمیر ورته پوره څرګند شو نو پیسې یې جیب ته کړې . خولی یې بیرته سمه او پر سر کړه ، پایڅې یې سمی کړې د سړک د غاړې د موچي نه یې بورس واخېست بوټونه یې پرې پالیش کړه یو ه فانتا یې پر سر پورته کړه او ټکسي ته یې لاس ورکړ او ولاړ.

د کیږده قدمونه ! ( اهسته برو ) پر مهال یو تن تورک ته نږدې شو او ورته یې په سا نیولی ږغ وویل:

ته هغه نه یې چې سوال دي کاوه ؟

تورک سړی سر تر پایه له نظر تیر کړ د کرتی غوټو ته یې ښه ځیر شو چې دوې یې شلیدلي وې ، بوټونه یې په ختو لړلي وو شونډې یې وچی ښکاریدې داسې بربښیده چې ډوډی ترې خلاصه شوي وي ایله اهسته بروته را رسیدلی دی.

تورک کټ کټ وخندل په فیلوسفانه توګه یې ورته وویل:

اې ساده !زه پوهیدم که دا کار ونه کړم تا غوندي به نهار د آهسته برو په اوریدو تیز برو کیدم چې کور کې هم پیاوه را نه خلاصه نه شي

کابل ۱۹۹۰

# ټبر علیکم!

په جرستان کې ټبر او ټبر پالنه خپل لوړ ستونځ( اوج) ته رسیدلي وه د ټبر پوښتنه د سلام پر ځاي کاریدله چې دو کسه به سره مخامخ شول نو د لاس پر ځای به یې ورته وایه:

ټبرعلیکم!

(په کام څوک یې ؟په هغه کې بیا څوک یې ؟ په هغه کې بیا...؟)

(توری یم په هغه کې بیا برک یم په هغه کې بیا خړ یم...)

که به یې کام سره نږدې راوخت نو لاسونه به یې سره وکړپوله او غیږ په غیږ به شول خو که توپیر پیدا شوی وای بیا نو بې شپیلک(ویسل) آزاده غېږ پیل کېده.

ګلو چې د یو ضروري کار دپاره جرستان ته تی نو خلکو ورته وویل پام کوه که چا پوښتنه درڅخه وکړه چې په کام څوک یې داسي یو څه ورته induced ووایه چې هغوی پوه نه شی کنه نو په بده بلا به واوړې.

ګلو د جرستان په لاره کې یو دوکان ته د څه اخېستلو لپاره تم شو دوکاندار د سلام پر ځای په مرموز ډول ترې وپوښتل: ټبرعلیکم!

ګلو هک پک پاته شوچې څه ووایي ترلږ چورت وروسته یې په داسې حال کې چې ژبه یې بنده بنده کیده زړه نا زړه وویل:

سیلاو ځی علیکم!

دوکاندار سر وښوراوه او د څه غوارېي پوښتنه یې ترې وکړه څو تنه چې د دوکان مخې ته ناست وه او غوړونه یې بوځ نیولي وه بیرته په خپلو کارونو اخته شول ګلو هم یو ژوره سا وشړله سودا یې واخېستله او رهي شو یو کوچی چې هلته پروت وو او په پټوکې یې ځان نغښتی وو لکه لیونی نا ببر ه را جګ شواو لکه ورکه یې چې موندلي وي نارې کړې:

ودریږه چیري ځې!

پروښېرکال دي پلار زما دوه سوه وزې په لوړه شیله کې وړې وې او ته داسې خرامان خرامان روان یې را تاو شه راوړه تاوان

خلک له ځایو را جګ شو ل او د ګلو خواته لکه کرک چې نیسي کرار کرار را نږدې کیدله همدا چې په ګلو کړۍ ( حلقه) تنګیده شور ماشور هم جګیده کرار کرار هوایې دزي هم پیل شوې او ورسره د خوشالۍ پټو وان هم ورسره پورته غورځول کیدل.

خوار ګلو له شرمه په خولو کې ډوب و چې کوم خراب کار یې کړی دی چې د ده به نیولو دومره خوشالۍ جوړه شوه

یو سپین ږیري چې نوی د ډزو څخه خبر شوي ووراغی ګلو خوشاله شو چې هغه به یې د دې وحشانو نه خلاص کړی ګلوته چې لاسونه او پښې یې ټینګی تړل شوي وې ورنږدې شو .

ګلو خوشاله شو چې اوس به یې هغه د دې مصیبت نه خلاص کړی خو هغه لومړی د هغه پر مخ ورتو کړل او بیا یې وپوښتل:

څه پیښه ده ؟

دا سیلاو ځی علیکم دی ! هغه چې نیکه یې پروښېرکال زما دوه سوه پینځوس وزې په لوړه شیله کې یوړل! په یاد دي شول هو هغه چې زما دوه سوه وزې هم ور پسې وې !

سپین ږیری یو وار بیا په نارو سورو شو

او ویل یې:

ما پریږدی چې ځان غازي کړم !

خو خلکو هغه ټینګ نیولی وو

اودګلو ګرد چارپیره اتڼ پیل شو

لندن ۲۰۰۰

# ددرواغو بازار...

د لندن د کډوالۍ کارمندانو( ایمیګریشن ) د ورځني چارو د اسانتیا لپاره د درواغو سنجولو ماشین د ساینس د کارپوهانو په مرسته په ډیر لوړ لګښت جوړ او نصب کړ خو د دې ماشین ګیج هیڅ کله له سرې لیکې څخه را کښته نه شو د دوی په خیال چې کار نه کوي نو یو بل ماشین یې د رښتیا ویلو د څرګندتیا لپاره جوړ او نصب کړ . یو افغاني رښتینی ډاکټر چې د دښمني له کبله کډوالي ته اړ ایستل شوی وو خپل د شلو کلنو د خواریو کور ، شتمني یې وپلورل ځان یې لندن ته راورسوه او دلته یې د رښتیا ویلو د ماشین کوټې ته بوت .ډاکټر چې پر پوه او علم یې باور درلود اود درواغو ویلو یې بد راتلل نو په خپله انترویو کې یې رښتیا وویل:

زه یو ډاکټر وم په روغتون کې مې کار کوی د دښمني له امله مې ژوند په خطر کې وو.....

د کډوالی کارمندانو په هېښتیا ترې وپوښتل:

یوازی ډاکټر وي بل کوم دولتي څوکۍ دي نه لرله ؟

کوم وزیر ، صدراعظم ، رییس جمهور یا باچا نه وې ؟

ډاکټر نه پوهیده چې دلته ټول راغلي کډوال لږ تر لږه دوه درې دوره باچاهي کړي ده . یا صدراعظمان وو

د ګډوالی کارمندانو بیا ترې وپوښتل:

لږ تر لږه کوم باچا کوم وزیر- مزیر...؟

ډاکټر د نه په ویلو سر وښوراوه

د کډوالي یو کارمند ډاکټر ته د دیپورت پاڼه ورکړه چې په هغه کې لیکل شوي وه:

موږ عادي ډاکټران . استادان نه منو د داسو خلکو په منلو سره به د کډوالو سیل را مات شي .موږ تر اوسه یوازي دیرش زره افغاني مهاجر منلي دي چې هر یوه یې لږ تر لږه یوه دوره باچاهي- ماچاهي یا صدراعظمي تیره کړې ده

د رښتیا ویلو ماشین ګیج هم هیڅ پورته نه شو نو هغه و چې هغه ماشین یې هم لکه خوار ډاکټر دیپورت کړ.

نو دا چې ولي دلته ځیني راغلي کډوال ډیر درواغ وایي دا ځکه د دوی د د رواغو خوند لیدلی دی او دا چې ولي ځیني ځانونه باچاهان ګڼي او لکه باچاهان برخورد کوی او نور خپل رعایا ګڼي دا ځکه چې د دوي کیسونه په پاچاهي منل شوي د ي.

لندن ۲۰۰۲

# وير مې زده کړ!

ددې لپاره چې د هيوادد نه پر مختګ علت جوت شي نو يوه ټول پوښتنه ( عمومي ريفرندم) اعلان شو چې جوت شي خلک په دې اړه خپل نظريات په ليکلي توګه ښاروالي ته وروليږي. هر هغه چا چې ښه دليل وليکي د هغه عکس به د نوي چاپيدونکي يو لکي نوټ انځور کيږي په زرګونه دليلونه ښاروالي ته راورسيدل چې ځيني يې دا دي :

- تلويزونونه لا ټول نه دي په دار شوي
- د نارينو حجاب نه دي سمبال شوي
- ډمانو ته په دولت کې ونډه نه ده ورکړ شوې
- کوڅه ډب سپي په قدرت کې نه دي ګډ شوي
- ځوانان ټول نه دي مړه شوي
- پوهان ټول نه دي تښتيدلي
- سياست کوونکو په کال کې هډو يو رښتيا هم  نه دی ويلي
- رهبرانو خپل تاريخ سم نه دی لوستی
- ښه ته مو ښه اوبد ته مو بد نه دي ويلي
- دولتي څوکۍ د پښو د مېچ پر بنسټ ( لمبر په اساس) نه دي ويشل شو
- ...

خو د مستري يو شاګرد دا جايره يووړه خو عکس يې چاپ نه شو ځکه نظام بدل شو

دي شاګرد ليکي وه چې استاذان شاګردان خپل نوکران ګڼي او بيا يې ورپسي زياته کړي وه:

زه دا ديرش کاله له ويررينګ کار سره شاګرد يم دوکان جارو کوم ، سودا راوړم ، کټو پخوم ، لوښي مينځم ، چاى دموم دا ټوله مې ښه زده کړي دي خو په  ويررينګ نه پوهيږم  ځکه کله چې د اصلي کار  ځاى راشي نو استاذ ما ديو بل کار پسې ليږي چې زده يې نه کړم له ما څخه د شاګرد په بيه د نوکر کار اخلي  همدا لامل دى چې زه په وير پوهيږم اورينګ مې نه دی زده

# ښه او بد

چې ژوندي يې تر تا بد او چې مړ شوې له تا بل ښه نه شته—له وګړو له نظره

چې برحاله يې تر تا ښه چې منفک شوې تر تا بل بد نشته---د همکارانو له نظره

چې جره ( مجرد ) يې تر تا ښه چې کوروال شوې تر تا بد نشته ---له انجونو له نظره

چې پلار د بچو يې له تا نه بد که بې بچو يې له تا نه ښه نشته ---د کرايي دار له نظره

چې نرم خوی يې له تا ښه که تند خوی يې له تا بد نشته ---د ميرمني له نظره

که لکړه لرې له تا بد او که يې نه لرې له تا ښه نشته ---د سپو له نظره

چې ږيره پريږدي له تا بد او که يې خريبي له تا ښه نشته --- د ډمانو له نظره

چې شتمن يې له تا ښه او که غريب وي له تا بد نشته—د خپلوانو له نظره

که موټر لرې له تا ښه او که يې نه لرې له تا بد نشته--- د ګاونډيانو له نظره

پيسه دوست که درواغجن شی يوه غيران ته بم اتوم شي--- د پوهانو له نظره

په سياست کې رښتيا نه شته ،ښيله غلا دغله بل کار نشته—د تجربو له نظره

# ملت او حکومت

شاګل خان د يوه سياسي ګوند په پټو سترګو د ټولو پريکړو په منلو سره د خپل کلي وکيل وټاکل شواو ددې لپاره چې له نورو خلکو نه وپيژندل شي يو ځ سره چتر ی يې په خپلو پيسو رانيوله هر چيري چې به تی که باران و که لمر که به پلي وويا سپور که به په ګاډی کې وو يا په مغازه کې هر چيري به يې چتری په سر نيولي وه

چا ترې وپوښتل چې وکيل صيب ولي دي په سرويس کې پر سر چتری نيولې ده ؟يو خو باران نشته او بل داچې موټر ټيټ دی او بيروبار دی ته هم ورسره په عذاب يې او هغه خلکو ته چې تا و رسره ژمنه کړي ده چې مرسته ورسره کوي هم په تنګيږي

وکيل صيب په ډيره امرانه ګړدود( لهجه ) تر يو لنډټوخي او غاړي تازه کولو وروسته وويل:

موږ چې وروسته پاته يو همدا لامل دی څکه ملت او حکومت بايد سره جلا شي که زه چيري دا چتری په سر نه کړم څرنګه به حکومت اوملت يعني زه او ته ځوک وپيژني (کټ کټ يې وخندل)

رښتيا هم د داسي ده د حکومت سړي بايد يا چتری يا قره قلی يا لويه صدری يا هم لکی ولري يا نور څه چې د ملت څخه يې توپيرو شي

# ستنګري ښځې

فرانکلن وايي د ښځو ژبې تورې دي او هغوی هيڅ وخت نه پرېږدي چې تورې يې زنګ ووهي ر ښتيا هم د ښځو ژبې غوځوونکي ( جارحه ) او اورنيو(ناريه ) وسلو ته ورته دي او دځينو ژبې د سرو زرو کوچنۍ زينتي تورې دي چې په اساني د مېړه د خپلوانو پر بدن ننوتلای شي. دي ډول ژبه لرونکو ښځو ته لاکتي ښځې هم وايي د ځينو نورې ژبې کټ مټ د ستوې(پيش قبضې ) په غټوالي او تيره والي دي چې د مېړه د دوستانو لاسونه او پښې په يو ځ ګوزار پرې کوي چې تور زنی ښځې هم ورته وايي.

د دې ښځو او د هغو د مېړو ځانګړتياوې داسي لنديز مومي:

- لاکتي ښځې کور او ميړه خپل کنې د سهار له لمانځه څخه تر ماخستن پوري د کور کارونه لکه جارو ، اوړه اخښل ، دډوډۍ پخول ، کالي پريولل د مېړه چاپې کول او پر مخ سرخي او سپيده تپل او د سهار دپاره اوبه تودول په يوازې توګه پر مخ بيايي مېړونه يې هم د دوتر له څوکۍ څخه د ناستي ستړي شوي وي لکه يرغه آس تر کوره ځان رسوي خو د کور وره ته د رسيدو سره سم سست او بيحاله لکه سل کلن سپين ږيری کړوپ او او کوږ په ټوخه ټوخه د کاله انګړ ته ننوځي او ځان هغې کوربچې ته چې تر مخه ورته اواره شوې ده رسوي او اوږد اوږد غځيږي توري هيلي چای او چاپې کول يې اړين( حتمي ) کار دی خو د زينتي تورې د زنګ د مخنيوي په پار د ميړه د نورو خپلوانو د چخولو نغمه د مېړه غوږ ته رسوي.

ستوې ډوله ښځې د مېړه سره يو ځای له خوبه راکښيني د کور ساده کارونه په خپله يا پر خواښې اجرا کوي او ګران کارونه د کورني کار په ډول مېړه ته پريږدي ،د مېړه د تګ سر يو ځاي دا هم له کوروځی او د مېړه د رارسيدو سره يوځای کورته رارسيږي او مېړه يې د رسېدو سره سم په کورني کار بوخت کيږي غوږ لوښې ، خيرن کالي ، اوتو... او چای دمول...

ستومانه ستوې ښځې تر چای دمولو پوري ارام کوي د پيالو په شرنګې سره پر ځاي جګې کښيني او چای څښې او د دې لپاره چې تورې يې زنګ ونه وهي د مېړه د خپلوانو په ردو او بدو ويلو پيل کوي د دې غوږونه او د هغه بل پوزه پرې کوي.

دربيمه ډله يې تور زني ښځې دي چې په يوولسو بجو له خوبه را کښيني په ببرسر او ناولي مخ د مېړه د تياري کړی سرې چای نوش جان کوي تر سينګار و روسته د پلار او يا دوستانو کره ځي او هغه وخت چې مېړه يې ټول کورني کارونه وکړي ايله بېله دا هم کورته رارسيږي او له واره د دې لپاره چې تورې يې زنګ ونه وهي د ميړه پر دوستانو بريد کو ي د هغو سرونه پرې کوي او چې مېړونه خوار يې څه ووايي نو د واره په سينګار ځي کې سينګار کړی مخونه پريمنځی او مېړونه لړمون خوړين پريږدي.

خو يه وروره ! يوه بله ډله ښځې هم شته چې اورني(ناريه ) ژبې لري چې يو وار يې موخه ( هدف ) ونيسي او هغه تباه کوي د ستنګر غوندي د موخې پسې وي دې ښځو ته ستنګرې ښځې وايي که دا ښځې ووايي چې ستا مور نور په دې کور کې اوسيدی نشي بيا چې هغه ورکه يا مړه نه کړي نه يې پريږدي د دې ښځو مېړونه سهار وختي راکښيني ټول کورني کارونه تر سره کوي بيا نو خپلو دندو ته ځي د دندو له بشپړيدو نه مخکې په يوه بهانه کورونو ته راځي چای دموي چې ميرمني يې راورسيږي بوټونه يې ورباسي هندي ګل ماله ( ګيت ماله ) ويدو ته اچوي او ورو ورو يې چاپې کوي .د ستنګري غوم غوم چې نور دي ورورنه دي ورور تر هغه دوام کوي چې خوار مېړه يې ومني چې ورور يې نه دي نور ورور.

خوار مېړه چې د ديګ او چايبر څخه وزګار شي نو سينګار ځي ته کښيني ستړګې توري ، ميک اپ او لبسرين وټپي د زرو اميل واچوي او په ناز ناز د ستنګرې خوا ته ورشي او د جار دي شم جار دي شم په ويلو د ستنګرې دود پو کوي او په چورت کې وي چې سهار ته اوبه تودي کړي کنه.

# ټولواکمني( امپراتوري)

د شرمښ له ګواښېدو ، ښکنځلو . غوړچونو او بې ځایه پلمو څخه د ختېو ډکي لوی ويالې دېخوا ټول ژوي ډیر په ربړ اخته وه خو د ويالې هاخوا ژويو ښه ژوند درلو د ځکه هغوی شرمښ نه د رلود

د ويالې دېخوا ژوو د ځان د ژغورتیا لپاره یو پلان جوړ کړ او د پلان د پلې کولو دنده یې زړې ګېدړې ته ورپه غاړه کړ چې شرمښ لکه پلار یې په ختو کې ډوب کړي.

یو و رځ زړې ګيدړې شرمښ په خبرو خبروله ختو ډکي ويالې ته بوت او د هغې خوا د خوږو غوښو ژویو ښيګڼې یې ورته څرګندولې او هم یې له پلان سره سم په درواغو سره پر دواړو خواو د ده د پلار واکمني کیسې ورته کولې او په مکر یې ورته ویل:

پلار دي ډیر زړه ور حکمران وو دلته به ودرید او له ويالې به یې په پټو سترګو ټوپ واهه هلته به يې یوه هوسۍ نوش جان کړه بیا به بیرته دېخوا راغی هغه وخت دا ویاله ډیره پسورروه وه اوس خو ډیره کمبره شوي ده ،ته هم د هغه پلار زوي یې لږ مېړانه وکړه په تا کې هم د هغه پلار وینه چلیږي

د شرمښ په رګو کې دغیرت وینه وچلیدله تر شا ولاړ خو زړه یې ونه کړ چې ټوپ ووهي سترګې یې سرې شوې

زړې ګیدړې پر له پسې هڅاوه او په مکر یې ورته ویل:

کټ مټ لکه پلارغوندی دي د هغه سترګې به هم تکي سرې شوې خو ټوپ به یې کړ.

شرمښ بیا تر شا ولاړ خو د ويالې په لیدو خولې پرې را ماتي شوې. زړې ګیدړې په مکر د واه واه کټ مټ لکه پلار دي! هغه هم په لومړي پلا هم داسي... خو ټوپ به یې کړ.

ویلو سره یې شرمښ نه پریښود چې د دي کاره لاس په سر شي.

شرمښ د پلارد غیرت خبرو نور هم زړور کړ. بیا تر شا ولاړ خو بدن یې وریږدید او پښې یې سستی شوې.

زړې ګیدړې د شاباش په ویلو سره وويل:

کټ مټ لکه پلار دي پر هغه به هم د غیرت خولې را ماتي شوي او لوند خیښت به شو او ټول بدن به یې له غروره ریږدېدې اوځان به یې لوند کړ تا خو لا تر اوسه ځان نه وی لوند کړی!

شرمښ ته دا ټول کارونه عادي وښوول شول د پلار غیرت یې سترګو ته نيغ ودرید تر شا ولاړ په منډه شو او ټوپ یې کړل تر ويالې هغه خوا واوښت.

شرمښ خپله امپراتوري جوړه کړه ځکه په اساني اوښت او راوښت د زړې ګیدړې بې کچه هڅول د شرمښ د امپراتوري د جوړولو لامل شو. ددې پر ځای چې یې دا خوا له ظلمه وژغوري هاخوا یې هم په غضب اخته کړه .

زړې ګیدړې په ناسمي هڅوني له کبله د مکارې لقب ورکړ شو .که څه هم زړې ګیدړې ددې تاریخي خیانت له کبله ځان په هم هغه ختېو کې ننه ایست خو ګټه یې ونه کړه اوپه تاریخ کې همداسي خوندي شوه .

# د درویش ډالۍ

زلمی ترکان چې د تندي په خولو او دلاسو په ټناکو يې ځان نه شو مړولای ، د یوه بډاي سړي پر لور مین شو شپه او ورځ لکه ماهي تپیده په ډیر زړورتیا د انجلۍ پلار ته د مرکې لپاره ورغی او له ځان سره یې وویل:

یا مرګ یا برۍ!

د انجلۍ پلار زلمي ته وویل:

په یوه شرط لور درکوم ته به ماته یو لک افغانی په درویزه ( فقر ) برابر وې!

مجنون زلمي چې په لسو کلنو کې یې د زرو افغانیو ښتن شوي نه و نو یولک په درویزه برابرول ورته نا شونی وبرېښیده زړه یې و ځان تر موټر لاندي کړي خو بیا یې له ځان سره وویل:

یو ازمېښت به وکړم! بیا یې د ملنګي کالي واغوستل او کچکول یې پر غاړه کړ کوڅه په کوڅه ،کور په کور یې ګدایي کوله ،څه مهال لا نه وو تیر شوی چې ونه یې ښه جګه شوه ،سره باړخوګان یې وکړه او ښه چاغ شو او بل دا چې تر یو لک نه یې ډیري پیسې ټولي کړې نو د انجلۍ د کور پر لور رهي شو په لاره کې یې له ځان سره ویل:

کاشکي له دې چمه (معاملې ) تیر شم

خوله دې کبله چې ژمنه یې کړي وه نو ورغی او د پیسوډک بکس یې د انجلۍ د پلار مخي ته کیښود.

د انجلۍ پلار پیسې وشمیرلې او بیا یې ورته وویل:

سمه ده اوس نو ګدايي پرېږده ! ورځه خپل اصلي کسب پیل کړه!

درویږګر زلمي په غوسه ورته وویل:

دا څه وایي خنګه پرېږدم!

تا دګدايي خوند لیدلی دی ؟ که له ځانه لګیا یې !

د انجلې پلار ورته په غوسه وویل:

دا زما شرط دی !

درویزګر ورته په غوسه وویل:

زه ستا د لور نه تیریدای شم خو د د رویزګري څخه نه !

او زیاته یې کړه: څه بیوزلی خو نه یم زر انډیوالانې مې نوري ستا له لور نه ښه پیدا کړي دي دا چې ژمنه مې کړي وه راغلم کنه زه او ستا لور ډیر سره لیری یو دا یو لک افغاني مې هم د درویش ډالۍ در بخښلي دي !

د خداي په امان.

# د روژې پر پنځلسمه اختر شو

دا د هغو درو — څلورو وګړو کیسه ده چې د بل یې نه اوریده .وایي داسې هیوادونه هم شته چې ټول سره یو د بل نه اوري یا لږ اوري باید توبه وکاږو چې له داسې خلکو څخه مو دی خدای وساتي او خدای دي دا وس وګړي چې غوږنۍ(ګوشکي) ځان ته واخلي.

وایي کوڼ جمال سپیره غوږونه او وچې شونډې لالهانده هاخوا دېخوا به ببړه ګرځید را ګرځید او هر څوک به چې مخې ته ورغی .نو په ډیر ټیټ ږغ چې یوازې دی پوهیده چې څه وایي ترې پوښتل:

- وروره زما وزې ورکي دي یوه یې شودې کوي او بله یې وچه ده. د وچي بیا یو ښکر مات دی زوی مې وړی دی...
- لارویو به د ده له حرکاتو او شونډو له رپیدو څخه اټکل کاوه چې خیر غواړي نو په غوسه به یې ورته وویل:
- خدای دي درکړي ځوان سړي یې شرم وکړه ځان او اندام دي ګوره خیر غواړې بې غیرته..!!
- چا چا به لا له غوسې غاښونه ورته چیچل.
- کوڼ جمال په نهیلۍ د کور خوا ته روان و او له ځان سره یې غوم غوم وو او ویل یې:
- اخیره زمانه ده څوک د چا نه اوري نن ده که سبا هرومرو قیامت دی خو سترګې یې پر یوه بزګر ولګېدې له خوشالۍ یې سترګې وبریښیدې او مخامخ ورته ودرید او ورته یې چې هغه هم له بد مرغه کوڼ وو وویل:
- سلام علیکم! زما دوې وزې ورکي شوي دي یوه شودې کوي او بله وچه ده او یو ښکر یې هم مات د ی زوی مې وړی دی مور یې شودې نه لري....

بزګر چې په خپل کار اخته وو فکر یې وکړچې دی هم روژه ماتي ته وږیا ترکاري غواړي نو په غوسه یې ورته وویل:

- زه دلته ترکاري نه پلورم ورځه له باراز نه یې وپلوره!

لاس یې د بازار خواته ونیوي

کوڼ جمال د خیر یوسي په ویلو د بازار خواته رهي شو اوله ځان سره یې ویل دا چې قیامت نه راځي د داسو ښو خلکو له برکته دی

جمال سوچ وکړ چې هغه ورته ویل وزې د بازا رخواته تلي دي نو د منني په پار یې و رته وویل:

- خیر یوسي وروره چې راودي ښوولې!

بزګر سوچ کاوه هغه ورته بد او رد وایي نو هغه ورته وویل :

- ځه وروره چې بیا را نه شې!

له نیکه مرغه جمال خپلې ورکې وزې په بازار کې وموندلې او په خوشالۍ کورته راغی او ټوله کیسه یې و خپلې میرمني ته وکړه او دا چې اوس هم ښه ښه خلک پیدا کیږي شکرونه یې وایستل.

جمال او میرمني یې وپټیله چې دا وچه وزه چې یو ښکر یې مات دی و بزګر ته وبښي ځکه دوی یې له لوی لالهاندي څخه ژغورلي وو . جمال وچې وزه له روغ ښکره ونیوله او بزګر ته یې بوتله

- بزګره وروه! خدای دی خیر درکړي ښه سړی یې زموږ ورکی وزې دي را وښودلې کنه په کومه قصابي کې به یې اوس غوښې پلورل کېدې او زما زوی به له لوږې مړ وای. دا وچه وزه یې ستا خیر که یو ښکر یې مات دي

(د اشارو سره).

بزګر چې د جمال شونډې او د وزې مات ښکر ولید داسي پوه : چې په ناحقه تور واوښت او داسړی وايي چې ولي دي زما د وزې ښکر مات کړی دی.

بزګر په داسي حال کې چې له غوسې ريږديدي وويل:

- زه والکه خبر يم بيا لېونی خو نه يم چې د پرديو خلکو د وزي ښکر مات کړم هغه هم په دې مبارکه روژه کې توبه ځه  وروره لار دي واهه!

دوه کانه دواړه کرار کرار اخته وه يو څه ويل کيدل اويو بل شی مانا ترې اخېستل کيدله.

جمال داسي وانګيرله چې بزګر ورته وايي وچه وزه نه غواړم هغه بله د شودو هغې راکړه!

نوهغه زاری يې ورته پيل کړې:

- دواړه دي له تا جار شي خو د هغې بلي شودې خپل زوی ته ورکوم مور يې شودې نه لري دغه ښکر ماته  وزه ومنه(د اشارو سره)

د جمال ننواتي و بزګر ته غوسه او قهر ښکارېده.

( د دې نه ښکاري که څوک د چا خبري نه اوري نو کړه يې هم  نه ويني خپل سوچ يې خبري او کړه ورښيي)

دبزګر چې وار په واريې غوسه له دې ناحقه تور څخه زياتيده وويل:

اوس چې ترکاري نه درکوم قست اخلې ما له هغه سره وپيژندي چې دنګه مار ( دعواجلاب) يې!

د دوي خبري دومره ردي بدلي شوې چې لاس او ګريوان شول  نو غوره يې دا وګڼله چې دربيم سړي ته ورشي . نو په داسي حال کې چې  د دواړو خولې ښوريدي(په اشارو سره) يو په غوسه او بل په ننواتي وو سره رهي شول په لاره کې يې يو سپين ږيری چې د بده مرغه هغه هم کوڼ وو او بام يې اخيړاوه وليد دواړو خپله کيسه ورته په يو وار پيل کړه:

سپين ږيري چې د دواړو د لاسو او شونډانو ښوريدل وليدل نو پوه شو چې دوی شکايت ته راغلي دي دوی وايي دا کوڅه مو ولي په اخېړ بنده کړي  ده. ولي ګانې ( اوګيره) په کور کې نه نيسی.

سپين ږيري سوچ وکړ چې يو خو  سپين ږيري دي  او بل دا چې روژه ده نو راځه دوی ملامت کړه نو لکه چې شخړه يې په پيسو غوښتله  لستونې يې بډ وهل ملا يې په پټو تينګه وتړله له بامه راکوز شو او په کوڅه کې د شو نډانو ښوريدل او لاسونه غورځول خپل لوړ ستونځ (اوج) ته ورسيدل:

دا لاره د چا دپلار ده!خود يې بندوم څوک يې قواله لري !!لاس مو تر لندنه خلاص! زه نر نه وينم! ښښنه غواړم مور يې شودې نه لري.. وچه  وزه... مات ښکر... ترکاري....

لاسونه هرې خواته په اشارو وه شونډې په ښوريدو  وې  .

نورو لارويو سوچ کاوه چې ګوندي دوي ورزش کوي

کرار کرار دا و رزش توند او تيز شو ،يو پر بل بريدونه پيل شول يو وار به ختګر لاندي شو بيا به بزګر او کله کله کوڼ جمال لاندي شو

په همدې جګړه کې روژه ماتي هم تير شو نو درې سره وپيتيله چې کازي ته ولاړ شي نو درې واره کازي ته ورغلل له بده مرغه کازي هم کوڼ وو او خداي خبر څومره پريکړې به يې هسي په اټکلي ډول کړي وي :

جمال ، ختګر او بزګر د کازي په لیدو په یو وار په خبرو او اشارو شول:

-چا لاره بنده کړي ... ښښنه غواړم مور یې شودې نه لري....پورته مې کاګل کوی... هاخوا بازار....

کازي د د وی په لیدو په غوسه شو او ویې ویل:- یو یو شاهدي ورکړي !

ختګر چې تر نورو ډیر سپین ږیري وو لږ مخته او په اشارو شو

-ما پورته پر بام کاګل کوي( پورته یې ګوته ونیوله )

هغو دوو نورو هم سر وښوراوه

کازي چې ډیر پوه سړي وو او پوهیدی چې هوښیارانو ته یوه توری بس دی نو له ځان سره یې سوچ وکړ د دوو پر ځای درې شاهدي ته راغلي دي خلک به وایي کازي بې عقله دی ، دی په نیمه نه پوهیږي زه دومره بې عقله نه یم نو له ځایه پورته شو او ویې ویل:

بس بس زه پوه شوم چې تاسوسپوږمۍ لیدلي ده ځی سبا اختر دي ( له داسي پریکړي جار شم رښتیا هم د سپوږمۍ ځوارلسمه وه او دوی هم سپوږمي لیدلي وه )

او هغه وو چې د روژي پنځلسمه اختر شو موږ لا د ماشومانو لپاره د کالو ټوکر نه وو اخیستي.

یو مشر چې د بل نه اوري او د بل په اشاره پریکړې کوي هرومرو به د روژې په پنځلسمه اختر وی خو د لسو مشرانو په پریکړو نه پوهیږم چې څه وخت اختر او څرنګه اختر شي او ....

# پر پاچاهي يې نه ورکوم

ترافيک غورازه چکله موټر ته لاس ورکړ . موټر و دريد او د کړکۍ له ماتې ښيښې نه د موټروان سر را ښکاره شو.

ترافيک : ليسانس او جواز سير دي راکړه!

چلونکي دېخوا هاخوا د واسکټ جيبونه ولټول او ويې ويل:

-راځخه ورک شوي دي!

ترافيک ورته په غوسه شو او له يو — دوه پټکو وروسته يې موټر د سړک پر غاړه ودروی او د جريمې د پاڼې په ليکلو بوخت شو

موټروان د واسکټ له غوړ جيب نه د نسوارو ډبلی راوکيښ د مخ او غاښو په ليدو شو او له ځان سره يې غوم غوم وکړ او ورو يې وويل:

تر دې موټرواني خو د ترافيکو کومنداني ښه ده .

ترافيک د جريمې پاڼه موټروان ته ورکړه

موټروان په تونده لهجه وپوښتل:

-څودي ؟

- دوه سوه!

موټروان د شنو لوټو بنډل راويست او يو لوټ يې ترافيک ته ګذار کړ او ورسره يې وويل :

نوريې ستا!

موټر يې سوچ کړ او په داسي حال کې چې ګير يې اليشاوه(بدلاوه) د ځان سره و ويل:

- نه بابا پر پاچاهي يې نه ورکوم او په روڼ تندي پر خپله لار روان شو

کابل ۱۹۹۱

# د ځوکۍ خوند

ترهغې وروسته چې جلندر خان له رياست ليري شو برات ګل خان چې ډير ښه چلندي او ټولنيز سړي دی زموږ رييس شو هغه  هر چا ته ان که د نهمې رتبې مامور هم  وي له ځايه ورته پورته کيږي د لاس روغبړ ورسره کوي او تر کتنې وروسته يې تر  وره پوري بدرګه کوي. زما دا کړه وړه ډير خوښيږي ځکه د انسان کرامت ته درناوی تر ټولو ښه کار دی .

ورو  ورو ځير کيدم چې نوی رييس صيب يوازې  پخواني رييس جلندر خان ته له ځايه نه پورته کيږي په ناستې روغبړ ورسره کوي او وروسته يې هم نه بدرګه کوي

ما ته دا معما پيچلې وه نو ځکه مې يوه ورځ رييس صيب ته ورغلم .ماته چې د تحريراتو کارمند وم له ځايه جګ شو تر روغبړ  وروسته مې د يوې پوښتنې غوښتنه  ترې وکړه هغه په ورين تندي اجازه راکړه:

ماځيني وپوښتل:

- رييس صيب که څه  سپين سترګې کيږي خو بيا هم ستاسو ښه چلند دا جورت راکوي چې يوه پوښتنه درڅخه وکړم.
- مهرباني!

تاسود هغه ښه چال چلنداو سلوک له مخې چې لرى ټولو اړوندو ته چې ستاسو ليدو ته راځي له ځايه جګيږی خو... خو يوازې جلندر خان ته ...

که مو ډير ځيني بد راځی چې نور دلته د راتلو اجازه ورنه کړم.

رييس وويل:

- نه ، نه!

د رييس تندي لا پراخ شو او لږ موسکی شو او ويې ويل:-

-هغه داسې سړي دی که چيري زه له ځايه پورته شم هغه سم له لاسه زما پر ځای کښېني او ورو يې زياته کړه :

هغه د دې ځوکۍ خوند ليدلی دی.

# مامور باشي خشره باشي پیش بیا

په داسي حال چې لاسونه مې په خپلو پړسیدلو جیبو نیولی وو په بسم الله ویلو سره د میوو د کراچیو ګڼه ګوڼې ته ننوتلم او له ځان سره مې وویل:

- شریفه! نن دي پوره پنځه بنډله د لسګونو نوټونو تنخواه او ماکول اخیستي ،جیب دي ډک دی چې نن میوه نه اخلې نو کله به یې اخلې ؟

د میرمني خبرې مې په غوږو کې ازانګې کوي چې ویلې:

- هو سړیه! ګوره شودې نه لرم ماشوم وږی دی د ګاونډي ښځې ته ډاکټر ویلي وو ښوروا او میوه خوره چې شودې وکړې نو یا غوښه راوړه یا میوه چې شودې وکړم.

غوښې خو مود لوی اختر په لومړی و رځ وخوړې پاته شوه میوه د ځان سره مې حساب وکړ که پوډري شودې واخلم د کور کرایه ، بریښنا ، صابون ، کوپوني توکي ،جارو ، تیل او د رادیو بالتی به په څه واخلم نو هرومرو شودې اخلم.

ښه کومه میوه واخلم را په یاد شول خټکی ښه دی ځکه کله چې مې میرمن د هیلی په واده کې خټکی خوړلی وو نو په ډیره خوشالی یې د شپې راته ویلي وه:

هو سړیه! نن مې شودې ډیري شوي دي ولې ؟

نن مې خټکی خوړلی دی ( په ډیره خوشالی ) نو خټکي پلورنکي ته نژدې شوم او زړه نا زړه مې ترې پوښتنه وکړه:

کاکا من په څو دی ؟

پلورونکي ما ته وکتل خو څه یې ونه ویل. له شا نه یو بل ږغ کړه:

من په څو دی ؟

پلورونکي د رښتني پیرودونکي د ږغ په اوریدو له واره ځواب ورکړ:

-اته سوه.

ډیر ورو د دوکان له څنګه تیر شوم چې پلورنکي مې ونه ویني. هر خټکی له من - درې چارکه کم نه وو او ما ۲۲۰ افغانی ونډه ورته ایستلې وه نو له ځانه سره مې وویل:

خټکی نه شفتالو ، نو د شفتالو کراچې ته ودریدم ،خو ژر پوه شوم چې شفتالو هم شودې نه ډیروي ،همدارنګه هندوانې ،زردالو. ام ، ګیلاس...

یو هم زما په خیال شودې نه ډیروي ،په همدې چورتونو کې وم چې کومه میوه شودې زیاتوي ، چې د مامور سرګردان خبرې را په یاد شوې ، چې ویل یې که میوه خورې نو ماښام یې اخله ډیر ارزانه وي.

کور ته ولاړم او ناوخته د میوې د کراچیو بازار ته د دوه سوو افغانیو سره ورغلم پیسې مې د کیسه برانو له ویرې په کور کې پریښودې ځان او کیسه بر مې دواړه بیغمه کړل.

جوړ جشن وو په هري کراچي ګیس ځړیده او ځلیده خو نرخونه همدا رنګه لوړ وه نود هري میوې د نرخ په اوریدو په موزون قدم ترې تیریدم اخیر ګیسونه هم تیل خوري ، خو د شودو د زیاتیدو میوه نه پیداکیده. له یوې کراچی نه چې د نورونه لږ وړاندې وه د سړک منځ کي ولاړه وه او ګیس یې هم نه درلود داسي ږغ پورته کیده:

مامور باشي خشره خور باشي پيش بيا!

له ځانه سره مې وويل:

لکه چې همدا بې ګيسه کراچی د مامورينو ده او همدا ماته وايي پيش بيا ، نو کراچی ته نژدې شوم په کراچی کې الوبالو وو هغه هم ډير ارزانه چارک په ۱۶۰ افغاني له واره مې له الوبالو څخه کڅوړه ډکه کړه او د سترګو تر کونجو مې بل پيريدونکي ته چې زما څنګ ته ولاړ وکتل هغه هم ماته مامور ښکاره شو او هغه ته زه . په ډير وياړ او غرور مې د ميوې کڅوړه په لاس کې ونيوله او د موټر تم ځی ته وراغلم خو اخيري سرويس را نه تللی وو او پر ځای يې ټکسي ولاړ ووچې په سل افغانۍ يې يو تن پورته کاوه او زما سره خلويښت افغانۍ وې. ټکسي موټران تلل او راتلل هيچ چا چنه منه نه ورسره واهله او هيڅ ټکسي وان هم نه ويل مامور باشي خشره خور باشي بی پول باشي پيش بيا!

يو ټکسي ته چې دوه سپرلۍ يې کمې وې ورغلم او په عذر مې ورته وويل:

وروه څلويښت افغانۍ درکوم مامور يم نوري راسره نشته!

هغه راته په غوسه وويل:

څوک بيا تجار دی چې ته مامور يې اخير موټر تيل خوری څه اوبه خو نه خوري!

موټر يې سويچ کړ او ولاړ.

پر سړک څوک نه ښکارېده يوه کراچی روانه وه چې يو تن پر هغه ناست او بل هغه راکښله زه هم د کوڅه دربو سپو له ويرې ورسره ملګری شوم .هغوی تيز تلل او ما ورسره ځغاستل له ځانه سره مې سوچ وکړ او داسي هوډ مې وکړ. چې دوی دواړه پر کراچی کښيني او زه به يې راکاږم ، ما کڅوړه پر کراچی کيښووله چې څيري نه شي او په دې ډول تر يو ځای پوري له دوی سره او هغه نه وروسته يوازي په داسي حال کې چې دشپې بنديز پيل کيده کورته ورسيدم .

ميرمني مې په وره کې ولاړه وه فکر يې کاوه چې کونډه شوې ده زما په ليدو خوشاله شوه او په شکر کښلو شوه او زما ژوندي راتګ ته يې خيراتونه او حلواوي اينبي وې.

له هغه وروسته چې ډوډۍ مو وخوړله نو په پوره غرور مې ږغ کړل:

راواخله هغه ميوه چې ويې خورو!

د ميوي له ټکي سره مې درې واړه ماشومان په بستره کې جګ کيناستل او کورس يې نارې کړ:

کومه ده ميوه!

تا به ويل نه چې پيشلمی دی که څه!

د ميوې په ليدو لږ وارختا شوم ځکه الوبالو چنجن وه او هلته نه ښکاريده نو ژر مي بهانه جوړه کړه:

چنجن الوبالو ويتامين لري!

# کسر شان

شمشتوخپله دنده د کسر شان په خاطر پریښووله هغه لومړی د سینما ګانو د ټکیټونو د تور بازار تکړه غړی وو هغه هدو په دې دنده کې بهرنۍ ژبه هم زده کړې وه او وروسته یې د ښو فېلمونو د کموالی په خاطر دا پخه دنده پریښووله او نوې دنده یې غوره کړه.

هغه چې لاس او پښه یې پلستر وه او د ابن سینا د روغتون په عاجلي کوټه کې بستر وو خپله کیسه داسې کوي:

هره ورځ به له ځیرو کالو او لوڅو پښو او شلیدلي ګریوان سره له یوې ټوټې وچې ډوډۍ د نوي ښار د لوکسو او پیسه والا خلکو د کورو مخې ته د خځلو(کثافاتو) بیرل تر څنګه کیناستم د کور د څښتن په لیدو به مې په پټه له جیبه وچه ډوډۍ راویستله نو هغه به مې په مزه مزه خوړله او د خځلو د بیرل په لټولو به بوخت شوم خو زما داکار په لیدو به کور والا شتمن زړه را باندې وسو ، جیب ته به یې لاس کړ ښې ډیرې پیسې به یې راکړې. تر ډیره مې دا کار وکړ په دې کار کې ډیر بریالی وم او ژوند مې ښه چلیده.

د ډالرو د بیې په لوړیدو سره ماته هم نوي چورتونه را پیدا شول او له ځان سره مې وپیتیله.

چې باید زه هم د ډالرو کار وبار وکړم نو د وزیر اکبر خان مینې ته چې هلته ټول بهرنیان ژوند کوي ورغلم هلته د یو ښه لوکس بهرني کور مخې ته کیناستم د کور والا د دروازې په پرانیستلو سره یو وروستی ماډل موټر راووت ،ما هم د چپه شوی بیرل په لټولو پیل وکړ . موټر راووت ما ته نژدې شو له سترګو له کونجو مې وکتل ، په موټر کې یوه پی مخې بهرنۍ پیغله ناسته وه ، غاړه دې مې بنده نه شې وایې: په بهرنیانو کې پیغلې نه شته نو یوه انجلۍ ناسته وه ما ته یې اشاره وکړه:

چې موټر کې ورسره سپور شم ما دېخوا هاخوا وکتل چې ډاډه شم هدف یې زه یم په خوشالۍ په موټر کې سپور شوم او په خوړو چورتونو کې لاهو شوم :

ښایې کوم لوکس رستورانت ته مې بیایي ؟ یا به یې خوښ شوي یم؟ وایې په بهر کې داسې ځوانان نه پیدا کیږي یا به مې کوم بل هیواد ته استوي ؟ نقدې پیسې به نه لري له چا نه به یې اخلي ؟ په همدې چورتونوکې وم چې موټر بیریک ونیوه او پی مخې ما ته په اشاره په مکرو‌ریانوکې د کثافاتو لوی سیمنټي صندوق راوښووه چې په چټلویو پټ وو او د دس — مس- چس په ویلو یې ما ته وویل:

دلته ډیرې خځلې شته انشاءالله چاره دې په دې کیږي او که دې چاره ونه شوه زه مازیګر بیرته ددېخوا نه تیریږم بیا دې د کابل دریاب ته بیایم....

ما له خوشالۍ نه په هندي اکټ سره ځان په هغه خځلو وغورځاوه او هلته پرتو ښیښو زه ټپي کړم.

او د باې باې په ویلو ولاړه .

# مدرنیزشن

زما یو ملګري نه پوهېږم څرنګه یې د بخت ستوری و ځلېدی په مکرویان کې یې کور واخیست. د دې لپاره چې ځان له سیالانو سره برابر کړي ټول زاړه او د مکرویانو تر سلیقې بهر شیان یې خرڅ کړل( ځکه دوی له د اپارتمانو له شا برنډې ته ځیر شوي نه و چې ځیني ترې د زړو کالو د زیرمتون کار اخلي) او پر ځای یې لوکس او برقي سامانونه رانیول چې تر نورو ګاونډیانو څخه کم نشي ، میرمني یې په خپل وار لستوني بډ واهل او د مېړنو اصطلاحاتو کورس یې خپل ماشوم ته پرانېست چې په خبرو اولغاتوکې تر نورو ماشومانو چارک- نیم چارک زیاد وي.

زه چې له نوي کوره خبر شوم د کور د تبریکي لپاره ورغلم د کوچني اجمل او د مور په خبرو او لباس کې ډېر توپیر راغلي وو کالي یې لکه وښتان لنډ شوي وه او د خبرو مساله یې ډېره شوي وه ، دا دومره بدلون په دې لنډه موده کې ډېر عجب راته ښکاره شو . خو د مکروریانو له اعجاز نه هم باید سترګې پټې نه کړو له اپارتمان سره داسي بدلونونه باید وي کنه نو عادي کور او مکرورینونو توپیر په څه کې دی !

کوچني اجمل به د هرې کولچې او چاکلیټ په اخیستلو سره د وښنه (!؟) او مننه ټکي کارول.

له دغو خبرو سره زه په چورت کې شوم او رنګ مې سور واوښت ورو ورو ځیر شوم چې ماشوم ما ته ځیني نصیحتونه هم پیل کړل:

کریمه( پخوا یې کاکا جان راته ویل)! خوارِه مه خوره چې ستوني دي په دردوي!

ما چې خوړو ته لاس نه وو وروړی دا خبرې مې اوریدې او خپله یې همداسي خوړله او د مننه ، موړ یم ټکي یې هم بیځایه کارول زه پوه شوم چې (دا تصنعي او تشریفاتي) ټپل شوي وییونه(کلمات) دي چې اجمل خوار ته په زوره ښوول شوي دي ، مور یې د ماشوم په دې اکر( وضع) خوشاله ښکاریده چې ښه نوي وییونه کاروي خو په ترڅ کې یې د ماشوم له بد سولۍ څخه به غوسه کېده نو ماشوم ته یې ویل:

- اجمل صیب! کریم مه په تلکوپ(!) کوه
- زما خندا د دغو نداریزو او غلطو کلماتو په اوریدو دوه ګرایه( دوه چنده) شوه نژدې وو چې د خندا له زوره پوخ ووهم خو ځان مې ټینګ کړ موړ په همدې خبرو کې وو چې زما دوست هم راښکاره شو
- کوچني اجمل د پلار په لیدو په چکچکو شو مور ته یې مخ ورواړاوه او ویې ویل:
- مامي هغه دی پاپي مې راغی!
- ما په اریانتیا شاو خوا وکتل او چې پر خپل دوست مې سترګې ولګیدې له خندا مې پوخ وهل او روغبړ ته یې پاڅیدم. په دې وخت کې داجمل مورزما دوست ته وویل:
- - د اجمل پاپي! ښه شو چې راغلې کریم توبره کي (!) ته راغلی دی.

د خندا مې تشي وخوږیده زما د دوست خندا هم چې رنګ یې لږ څه سور اوښتي و له ما سره غبرګه شوه .د اجمل د مور خندا په واریز( وقفه یې) ډول زموږ خندا پسي اخیسته ( تعقیبول) او زموږ د ټولو خندا په کوټه کې انګازې جوړې کړې وې

# خو زه بیچاره!

له ډم نه پوښتنه وشوه ستا او ډاکټر تر منځ توپیر په څه کې دی ؟

هغه  وویل:

دواړه سپینې چپنې اغوندو ، د دوکان د خلاصیدو اجازه لرو ، دواړه له جارحه وسلو نه کار اخیستلای شو  ،دواړه تر سلو نه زیات فیس اخلو....

خو زه بیچاره!

خو ته بیچاره!!!

هو خو زه بیچاره د مشتري د وژلو حق نه لرم او هغه یې لري( په اسکیرلي برغ)

# رایګیري

مدیر عارف په منډه منډه د غونډې کوټې ته ځان ورسواوه ، هغه سوچ کاوه چې پرې ناوخته شوی به وي نو د دروازې له چولې نه یې دننه وکتل د رییس لاس یې د کوم شي په رای اخیستنه کې پورته ولید نو د ده لاس هم هلته په دهلیزکې اتومات پورته شو او تر ټک ټک وروسته د غونډ ې کوټې ته ننووت او د نورو غړو په منځ کې چې د هغو هم ښي لاسونه جګ وو ، کیناست د ده نه وروسته مدیر صمد ، مدیر اکرم ، مدیر جعفر ،پري ګله چې د هغو ښي لاسونه هم پورته وو یود بل پسې کوټې ته راننوتل.

رییس د دې اکر ( وضعي ) په لیدو لږ سور واوښت موسکی شو او ویې ویل:

وبښی! زما په تخر کې دانه راختلې او نه شم کولای لاس ټیټ کړم خیر په هر ډول لکه چې د غونډې ډیر غړي پوره دي نو غونډه رسماً پیلوم.

# پروپاګند

پستکي خمڅ ته ورو په غوږ کې وویل:

ته خبر یې ؟

خمڅ په هېښتیا او وارختایي وپوښتل:

نه وروره څه خبره ده ؟

بې و زلي او لوږه ډېره شوې ده ان هغه لنډک نه دی

- هو!

د هغه خوارکي مخ له ډېرو شوتلو د خوړولو نه پړسیدلې دي!

خمڅ بیا په هېښتیا سره وپوښتل:

شوتلو یې څرنګه مخ پړسولې دی ؟

پستکي په حق جانبه بڼه وویل:

ولي نه دي اوریدلي چې د غوا نس د ډېري شوتلو په خوړلو پړسیږي

## ښکلا دي وي همداسي

بيزو سوی ته چې ورسره ګاونډی وه د خپل ورک شوي زوی کيسه کوله سترګې يې د اوښکو ډکې شوې او په داسي حال کې چې يې پوزه يې راکښله و ويل:

هغه زما ډير ښايسته ماشوم و د هغه د پوزې او شونډو ښايست خو لاڅه کوی ډير ښه پيکی يې هم د رلود هغه کټ مټ زما د مشر زوی په شان ښکلی...

سوی ته د بيزو د مشر زوی د څيرې را په يادېدو سره داسي په کړس کړس خندا ورغله چې په وچو پاڼو او وښو کې يې څو لوټکي وخوړلې

# چاغ چاغ

د ښاروالي په انګړ کې یوه ډله مظاهره چیان را ټول شوي وه او همدا یو شعار یې را غبرګاوه :

چاغ ، چاغ

بیا به یوه ږغ کړل :چاغ

نورو به په یو ږغ غبرګول:

چاغ چاغ ، چاغ چاغ

د انتصابي کمیسون رییس چې ډیر ډار شوی وو سل زړونه یو کړل او له مظاهره چیانو څخه یې وپوښتل:

.ولي چاغ ؟

یو تن مظاهره چی چې اوقي (پوخ پتیر) ښکاریده په سا نیولي ګردود ( لهجه) ځواب ورکړ:

هر ډنګر چې چاغیږي بیا یې بل ډنګر پر ځاي ټاکل کیږي!

پوخ پتیر بیا مخ مظاهرې چیانو ته واړوه او په حق جانبه بڼه یې هغوي ته وکتل اوویې ویل:

نو موږ چاغ غواړو

ټولو په یوه اواز ورسره غبرګه کړه :

چاغ چاغ ، چاغ چاغ

چاغ چاغ ، چاغ

# مېړنه سیالۍ

د مکروریانو په اپارتمانو کې د دوو ښځو تر منځ په کوم کوچني شي لفظي شخړه پیل شوه . لا څو شیبې نه وې تیرې شوې چې ګڼ شمیر لیدونکي دې بې ټکیټه ننداري ته را غونډېشول .

ته څه شي یې!

څه لرې ؟

په څه نازیږې ؟؟

خبرې کرا رکرار تودېدې ، لومړۍ ښځې له لږ سوچ نه وروسته پر پوړني ملا لکه پهلوان ټنګه وتړله او په منډه خپل اپارتمان خواته ولاړه او د هغې خوا یې په داسي حال کې چې یو برقي داش یې پر اوږه راخیستي وو او خندنې وه بهر راووتله او خپلي حریفي ښځې ته یې په طعنه وویل:

او خوارکۍ ! راشه زما د دې برقي داش سره خبري وکه!

دویمه ښځه د داش په لیدولو لکه چې برق نیولې وی هغه هم په بېړه خپل اپارتمان ته ننوتله او له څلورم پوړ نه یې پر اوږه خپل سل کیلویې برقي داش بهر راویسته او ورسره یې وویل:

او بیچاره ته څه له ماسره خبرې کوې! زما د دې نوي برقي داش سره خبرې وکړه!

د ننداړچیانو پرله پسي چکچکو لومړۍ ښځه وهڅوله چې په منډه ولاړه شي او ځان وښي ،هغې هم په پنځو ثانیو کې یوه دولس ګزه غالۍ چې دوو پهلوانانو له ځایه نشوای ښورولای له پېنځم پوړ نه پر اوږه راویستله اوپه میدان کې یې وچرخوله او مخ یې خپلي حریفي خوا ته کړ او ویې ویل:

ته کم بخته لومړی زما د دې دولس ګزه غالۍ سره خبرې وکړه!

دویمي ښځې خپل لستوني بډ واهه او لکه فنر ولاړه هغې هم هم هغسي یو دولس ګزه غالۍ پراوږه راویستله او ویې ویل:

ته خواره هم لومړی زما ددې( ماور) غالۍ سره خبرې وکړه! زما سره څه خبرې کوې!

لومړۍ ښځې ۲۶ انچه رنګه تلویزیون د الماری سره چې څلور تنو هغه نشوای انتقالولای لکه بنکه بهر راویست او حریفي ته یې په کنایه وویل:

او بیچاره لومړی زما د دې رنګه ۲۶ انچه تلویزیون سره خبرې وکړه! زما سره څه خبرې کوې!

دویمي ښځې هم همداسي یو تلویزیون او یو رادیو کسیټ سره بهر راووتله او ویې ویل:

ته لومړي زما د دې شل انچه رنګه تلویزیون او دوکسیټه نېشنل پانو سونیک ټیپ سره خبري وکړه!

شخړه دومره توده شوه چې سړک بند شو د سینګار الماری تخت ، ګانې ، لوښي ، بستري ، چرګان...ورو ورو د دویمي ښځې په تندي خولې راماتي شوې څکه د لومړۍ ښځې سامانونه او د ننداړکوونکو چکچکو لږ زیاتی کوی ، خصوصاً د سرو زرو یو کیلویې امیل یې روحیات بلکل خراب کړل او په نیمه ضعف حالت یې پر یوې بسترې تکیه وکړه.

لومړي ښځې چې میدان یې وړی ګانه لکه یو ملي اتل د یو میز له پاسه ودریده او د کالیو او ګانو په ښوولو لکه کلنګ چې ښکاره کوي پیل وکړ او د هر توکي په ښکاره کیدو سره به یې زیاته کړه:

زما سره څه خبرې کوې د دې ...!

د ننداره چیانو چکچکو میدان ښه تود کړی وو د دې نه وروسته یې د میره د بانکونو او نوي رانیول شوو جایدادونواو د دوستانو دموقفونو په لست په ویلو پیل وکړ:

په پغمان کې سل جریبه باغ!

چکچکي

زما سره څه خبرې کوې راشه زما د میره سره چې رییس دی خبرې وکړه !

دویمه ښځه چې ضعف وه د رییس په اوریدوسره یې جتکه وخوړله له ځایه را پورته شوه او ویې پوښتل:

- څومره وخت کیږي چې رییس دی ؟

- یو کال کیږي.

دویمي ښځې چې لاس یې پر ملا نیولی و و کټ کټ وخندل او ویویل:

هوو بیچاره! رږغونه یې پیل کړه ټول چوپ شوه چې څه خبره ده .

هغې ویل:

هو بیچاره! زما میره یوه اوونۍ کیږي چې رییس شوی دی.

سامانونو ته یې اشاره وکړه او زیاته یې کړه:

دا یې د یوې اوونۍ کمایې ده یو کال وروسته راشه بیا سیالۍ را سره وکړه ولي لي.

لومړۍ ښځې د ولي لي په اوریدو ضعف وکړ او ګاونډیانو هغه خپل اپارتمان ته بوتله

د میدان پر مخ دومره کالي او سامانو نه وو چې د دیرشو ځوانانو په درو ورځو کې هم نشوای دننه کولای ( خدای دې مو د ښځو د سیالۍ نه وساتي) ،

(دا دهغه رییسانو میرمني وې چې رشوت یې نه خورۍخدای مو له رشوت خوره ساته )

# مجرد کوپون لرونکي

کله چې د رادیو څخه دا اعلان خپور شو چې مجرد کوپون لرونکو ته د (الف ) احتیاطي پارچې په بدل کې د واده لګښت او که مجرد کوپون لرونکي ښځه او نارینه واده سره وکړی د (ب) احتیاطي پارچې په بدل کې د مکروریان د کور ښتنتان کیږي. د اعلان په سبا د کوپون شعبې ته د درخواست لیکولو پنډونه راورسیدل چې په کې د چا میرمن لا درکه ، د چا خو لا پلار هم مجرد وو. ماچې د دیرش کلو راهیسي د مکروریان د کور درلودو ارمان د رلود او ان ورته حزبي شوي وم او د واده لګښت ، سینګارول ،ګل پوشه ګاډۍ ، ساز ، هوټل ،ویدویې کمر ې د نرخونو په اوریدو مې قره قلي خولۍ پر سر څلور ګوتې جګه شوه . نو ددې اعلان سره مې یوه اوږد درخواست لیک د کوپون شعبې ته وروړ خو هغو رسمي اسناد غوښتل ما هم لستو نې بډ وهل او خپلې میرمني ته مې طلاق ورکړ ، هغه هم د خپل لمسي کره ولاړه.

د طلاق اسناد مې د درخواست لیک سره سنجاق او د کوپون شعبې ته مې ور وړ او په سلو واسطو مې متاهل کوپون په مجرد کوپون البش کړ ، ددې پراو وروسته یې د نوی نامزدې د خلص سوانح فورمه راکړه ، فورمه مې واخېستله او درسمي کارمندي نامزدې په لټه کې شوم د خپلې شعبې نه مې پیل وکړ ، هغوی ټولو کارمندانو د نورو سره وعدې کړې وې ، په ګاونډې نورو مدیریتونو ریاستونو ، وزارتونو او کوڅو . لیلامي پلورونکو کې وګرځیدم داسي کارمنده مې ونه موندله ، په یاد مې شوه چې زموږ د شعبې پیاده تاجبرو میږه پینځوس کاله پخوا مړ شوي وو او مجرده وه نو هغې ته ورغلم او د واده وړاندیز مې ورته وکړ د بده مرغه هغې زموږ د رییس سره وعده کړې وه نو اړ شوم بیرته خپلې میرمني ته مرکه واستوم چې لومړي چیرته پیاده -ماده مقرره شي او بیا واده راسره وکړي هغې چې له ما په څلویښت کاله واده او ګډ ژوند کې ښه ورځ نه وه لیدلې نو مرکه یې رده کړه او مناسبه یې وګڼله د خپل لمسي سره واوسي نه زما په ګېډه وړي کارمند سره ،ما د مکروریان د کور ،په هوټل کې واده ، ویدویې کمره ،عکاسي ډیري کیسې ورته وکړې خو هغې داسي وعدې ډیري اوریدلې وې او اوس چې په رښتیا برابري شوي وې هغې نه منله ،قران او قسم هیڅ ګټه ونه کړه نهیلۍ شوم اخیر مې یوه کرایي میرمن وموندله فورمه مې ډکه کړه د کوپون شعبې ته مې ور وړه ، د کوپون مدیر د فورمې په لیدو په خندا شو او یې ویل:

دا ښځه زه پیژنم د سلو زیاتو کارمندانو فورمې هغې ډکې کړې دي که زه وغواړم دا فورمه ردولای شم. ما ډیري ننواتې ورته وکړې او د اوږو د پارچو څخه ورته تیر شوم بیا یې یو بل ډول فورمه را کړه چې هغه ډکه کړم .دا فورمه مې د ناوې دکالیو د لګښت کمیسیون ته وروړه ، هغو د عکس په لیدو د وطني ټوکر بیه ولیکل ،ما ډیر استدلال وکړ چې ناوې والا وطني ټوکر نه خوښوي .خو هغوي اصرار کاوه چې وطني صنایع باید تقویه شي ، د غوړو د پارچې په ورکولو مې په ومنل چې بهرنی صنایع هم باید تقویه شي.

بیا د واده د موټرد لګښت کمیسیون ته ولاړم هغوي د تیلو د سپما په پار د بګۍ (ګاډۍ )لګښت راته ولیکی خو د صابون د پارچو په ورکولومې د پروړولګښت سپما او د ټکسي لګښت پر ومانه.

او د موسیقي ( ساز ) کمیسیون ته د تلو نه مخکې چا وپوهولم چې ځان دیسکو کړم کنه نو یوازې د ډول (دوهل ) لګښت لیکي زه چې په دې باریکو پوهیدم ،نو د خپل لمسي پرانګې پتلون مې واغوست . ریشکي بوټونه مې په پښو ، مونتانا بیک مې پر غاړه ، ژاولې په خوله ، زنځیر په لاس د ای یم دیسکو ډانسر په زمزمه کولو سره کمیسیون ته ورغلم . هغوی زما د سپینې ږیرې او کنډولې خولې او ډسکو کالیو په حرمت کلاسیکه موسیقي د نویو ځوانانو په اواز کې راته ولیکل ، ډیري زاری مې ورته وکړې چې جازوبم موسیقي چې کابه یې هم اوري او خوند ترې اخلي راته ولیکي خو هغو چې رشوت نه خوړی او ویې نه منله.

د سینګارځې د کمیسیون راته ولیکل زیبایې در ساده ګي است خو د بورې د پارچو په بدل کې یې ولیکل زیبایې در ارایش غلیظ است..

چې فورمه مې ډکیده یوازې د( الف ) او (ب ) احتیاطي پارچې پاتې وې. ان کتابچه یې هم کوم کمیسیون رانه واخېستله ، دا دوي پارچې مې د فورمې سره سنجاق کړې او اړوندي شعبې ته په ډیره ببړه ور وړه او هلته یې یوه نمره راکړه او چې راوتلم نوراته یې وویل :

دوه سو کالووروسته بیایو خبر ونیسه!

ددې ټکي په اوریدو سره مې پښه د دوتر په میز کې بنده شول او هغه وو چې له خوبه راکښیناستم د ځان سره مې وویل: دا ناممکنه ده چې دومره ژر دي د کور څښتن شم .

کابل ۱۹۹۰

# د غوښو ضررونه

په دوتر کې ناست وم هوا توده وه برېښنا ( برق ) نه وه چې پکه چالانه کړ م ، نو مې یوه نوې ورځپاڼه چې ښه پکه پرې وهل کیدله راواخیستله او په پکه وهلو مې پیل وکړ . د یو مطلب سریزه(د غوښو ضررونه ) په لیدو مې د لومړی ځل لپاره د مطلب پوره لوستلو ته زړه خوشاله کیده او ورو ورو د زړه ضربان مې ډیریده نو د ځان سره مې وویل:

زرینه! لکه چې د غوښو د رانیولو څخه بېغمه شوې ! او د ځان سره مې حساب پیل کړ : که د مېلمنو او کور لپاره غوښې رانه نیسم نو په تنخواه مې هرومرو گذاره کیږي په ډیره خوشالۍ مې پیاده ته رږغ کړل :

جانو کاکا نورو ټولو کارمندانو ته رږغ کړه.

ټول مامورین آن د جنسي ، خدماتو ،او معاش کارمندان په چټکي یو د بل پسې دوتر ته راغلل د هغو په گمان چې د سیلو ډوډۍ مې ورته راوړي ده زما پر میز راټول شول او ما د د غوښو ضررونه تر عنوان لاندي مطلب په لوستلو پیل وکړ:

(غوښه اصلاً د انسان خواړه نه بلکې د ځناورانو خوراک دی او په نابېره توگه د بنیادمانو په خوړو کې ننوتې ده ، د هغو څېړنې له کبله چې د امریکا په ایالاتو کې تر سره شوي د غوښو خوړل د بډوډې د زهري کیدو د ځیگر د خرابیدو سبب گرځي ، معده کمزوره وي...لنډه دا چې د انسان عمر نیموي...)

د کارمندامو څخه هر یوه د دې مطلب په هکله په نظر ویلو پیل وکړ:

مامور افضل د جنسي مامور ویل:

- ولا رښتیا! زمو ږ په کلي کې بابا خیرو یو سلو لس کاله ژوند وکړ ، ځکه چې په ژوند کې یې په غوښه باندي څکه هم نه وه کړې.

مامور عباس د ارشیف مامور داسي زیاته کړه:

دا ښه ده چې تنخواه مو ډیره نه ده که نه نو اوس به په څه ناروغیو اخته نه وای.

بي بي نازو د دوتر ټایپستي چې ډیره هیجاني شوې وه په ماته ژبه وویل:

زموږ د ښی خوا گاونډی چې تجار وو د ډیرو غوښو د خوړلو په وجه د بډوډي د ناروغي څخه یوه اونۍ مخکي مړ ....

د املاکو مدیر رجب گل په ډیره مینه د بي بي نازو خبري پرې کړې او ویې ویل:

دا کومه گنه ده ؟ باید ټول د هغې یوه یوه گنه د میلمنو او د کوشنیانو د مور د قناعت په خاطر د ځان سره ولرو . ټولو مامورینو د سر په ښورولو او هو ویلو دا وړاندیز تایید کړ ، دستي مو پیسې ټولي کړې او د مامور شیرین ته مو دنده ورکړه چې ژر تر ژره شل گنې د همدې ورځپاڼې راوړي

. موږ ترغرمې په همدې موضوع تبصرې وې. دولس بجې په یوه بهانه د دوتر نه راووتم څو دا مهم او ارزښناکه سند ژر د الله مبارک مورته ورښکاره کړم .و سپرلۍ گاډۍ ( سرویس ) ته وختم ، څنگ ته مې یو چاغ سړي چې یوه یوه نیمه کیلو غوښه یې په همدې گنه کې نغښتې وه ناست وو ، زړه مې را ته ویل چې دا مطب په لوړ اواز په سرویس کې ولولم او ټول سرویس د غِوښو په ضرر وپوهوم ، ولي جرات مې ونشو کړای ، نوهغه و چې مخ مې د څنگ ناست چاغ سړي ته واړوی او په فیلوسوفانه لهجه په داسي حال کې چې ورځپاڼه مې ورښکاره کوله ویل:

دا مطلب مو لوستی دی ؟ دلته یې لیکلي دي چې غوښه اصلاً د ځناوروخوراک دی ..

د ځنګ سړي يو وار راته سور او شين شو اوپه لوړ اواز يې په داسي حال کې چې په بريتو يې لاس تيراوه را باندي چيغه کړه:

غوښه د زمريانو خوراک دی نه د ګيدړانو! ته دي قواره ګوره ، مخ يې نورو سپرليو ته ورواړاوه او ويې ويل: چې وس يې په غوښو اخېستلو نه رسيږي بيا يې خبري ګوره

د ځناورانو خوراک! په داسي حال کې چې مخ يې بيا ما ته راواړاوه:

ځناور خو ته يې چې غوښې نه شوای رانيولای زه چې ډېر توهين شوی وم بېله دې چې سوچ وکړم شخړه مې ورسره پيل کړه:

غوښه د زمريانو خوراک دی!

-نه دی!

-دی!

-نه دی

-دی

د سرويس سپرليو د هغه پلوي کوله . سرويس لا يو تمځی نه وتلی چې چاغ سړی له ځايه پورته او په غوسه يې وويل:

دا لومړی ځل دی چې وه سرويس ته پورته کيږم نه پوهيدم چې دلته داسي احمقانو سره مخامخ کيږم له سرويس نه کوز شو او يو ټکسي ته وخوت.

زړه مې له ډيري غوسې پړسيدلی وو چې ولي نورو سپرليو د چاغ سړي پلوي کوله نو د همدې مطلب د پوهيدلو په پار مې د شا څوکۍ يو ځوان ته ورځېپانه ورښکاره کړه ، هغه هم زما خبرې تاييد کړې ما په غوسې ځيني وپوښتل:

نو ولي مو د هغه چاغ سړي خبرې تاييد ولې ؟

هغه راته وويل: د هغه خبره درسته وه ځکه غوښه د زمريانو خوراک ده زه په خپله تيروتنې پوه شوم ځکه چې زمری خو انسان نه بلکي ځناور دی ، د کړکۍ نه مې بهر وکتل چې ګوندي چاغ سړی ووينم او ورته ووايم : بلې بلې غوښه د زمري خوراک دی خو زمری انسان نه دی . خو هغه نه وو.

کور ته د رسيدو سره سم مې د الله مبارک د مور نه وپوښتل:

څه دی پاخه کړي دي ؟

ښځې مې په ډيره خوشالۍ راته وويل:

دا چې زموږ د ګاونډي د ميرمني ليور په ښاروالي کې پياده دی نن يې پر موږ باندي د زړه سوی په خاطر د ښاروالي په بيه غوښه راوړې او ما دهغې نه ښه ښوروا پخه کړې ده ، ما په داسي حال کې چې ورځېپانه مې و ربښکاره کوله ورته وويل:

غوښه مضره ده د خدای دپاره غوښه مه خورئ غوښه بدوډي زهري کوي ۀغوښه.....

د غوښې داسي بد ويل مې و رته پيل کړه تا به ويل چې د پلار پلار دښمني مې ورسره ده ، نه پوهيږم چې ولي زموږ خبرې دومره کښته پورته شوې چې ميرمن مې په غوسه راته وويل:

موږ یې خورو که ته یې نه خورئ تا ته به بل کوم شی تیار کړم . او هغه وچې له چایو سره یې وچه ډوډۍ راته کېښوده او دوی په مزه مزه شوروا نوش جان کړه.

په زړه مې یوخداي خبروو . طاقت مي ونه شو کړای او په لوړ اواز مې وويل:

غوښه د ځناورانو خوراک دی بدوډی..معده....ځیګر...

میرمني مې په غوسه راته وويل

- نور خلک یې ولي خوری ؟

-تاسو نادانان یاست د امریکې پوهانو څیړنه کړې ده....

خو میرمني مې ورځپاڼه لیري ګذار کړه او په غوسه د پلار کره ولاړه.

سبا کله چې د خسر کره ورغلم ، خواښې مې خپله لور پوه کړې وه هیڅ یې راته ونه ويل. چې ډوډۍ راغله نو خواښې مې د قورمې قاب زما له مخي نه چې بوی یې زما پزه تخنوله لیري کړ او پر ځای یې د پوډري هګیو خاګینه راته کېښودله. اوس چې هر چیري که واده وی یا میلمستیا نو ما ته د غوښې پر ځای سور کړي پټاټې چې چپس یې بولي یا دال او یا پوډري هګۍ مخي ته ږدي او ورسره دا خبره هم کوي چې ما ته ډیر زور راکوي

د زرین جان! غوښه نه خوري حساسیت ورسره لري.

# مشابه نومونه

زموږ د تاریخ ښوونکی یوه ځانګړتیا دا ده چې نومونه به یې د یو بل سره غلطول هر وخت چې ټولګي ته راغي نو نسیم ته به یې عبداله ، عبداله ته خلیل ، خلیل ته قمبر وایه

یوه ورځ چې ټولګي ته راغلي نو غلام ته یې وویل :نورالله ته د پرون لوست تکرار کړه.

او خپله په قدم وهلو شو ټول چوپ وو ښوونکی په غوسه شو او بیا یې تکرار کړل:

نورالله دي لوست تکرار کړی بیا راغی غلام ته یې ګوته ونیوله

نورالله ولي ځواب نه راکوې!

- صیب زه غلام یم! ښوونکي لږ جټکه وخوړله او ویې ویل:

مقصد مي غلام وو!

موږ نه پوهیدو چې احمد شاه بابا ، بابر ووکه تیمور شاه و که وزیر اکبر خان....

دومره پوهیدو چې پانې پت فتح شوی ولي دا چې چا فتح کړی غلام سخي ، نورالله که قسیم نه پوهیدو ددې جنجال د ختمیدو په خاطر ښوونکي موږ ته کورنی کار راکړ چې هر یو دي خپل نوم پر یو ټوکر وګندي. موږ ټولو دا کار وکړ ، خوبیا هم چا چا نوم په ټټر نه ټومبی هغه به له پوښتنې څخه خلاص وو غبی شاګردانو به د جامو د پریولولو په پلمه نوم پر ټټر نه ټومبی .

موږ په تاریخ کې په نیټو پوهیدو خو د پاچاهانو په نومونو نه پوهیدو ،

پوهیدو چې یو پاچا ۲۴ زامن درلوده اوپایتخت یې کابل ته ولیږدوی خو نه پوهیدو دا احمدشاه وو تیمور شاه که زمانشاه و...

نور نو موږ په یو بل نومونه کیښوول چې ښوونکی ته اسان شی .:تپین ،ژړ ،لېونی ،کچل ،پک ،

یوه ورځ زموږ ټولګي ته دوه نوي شاګردان را وپیژندل شول چې په حقیقت کې په دغه ګڼو نومونو کې دوه نور هم زیات شول چې ټولګي ته راغلل نو د تاریخ ښوونکي ترې وپوښتل

هلک ستا نوم څه دي :

جبار

بیایې د دویم شاګرد نه وپوښتل هلکه ستا نوم ؟

موږ ناري کړل:

بیزوګی

ښوونکی په غوسه شو او ویې ویل:

بلا مو وواهه په دې مشابه نومو څه خپلوان خو نه یاست.

# ځانګړې مصاحبه

خبر یال (خبرلوڅ) د یوې ډلې سندر غاړو سره د مرکې په ترڅ کې یې لومړي د بلبل څخه وپوښتل:

ستاو په زمزمه کې څه راز پروت دی چې شتمن او خوار ټول ستا لیوال دي ؟

بلبل په ډېر پراخ تندي ځواب  ورکړ ،

زړه لري ټول که خان وي که خوار

بیا خبریال د کینري نه پوښتل:

ستا د یوازیتوب د زمزمې مطلع څه ده ؟

واړه عاشقان دي خوک چې و ړي په نس په دې جهان دي

نو همدا علت دی چې د دې زماني عاشقان ستا د ږغ سره مینه لري

خبریال بیا مخ زرکې ته کړ او ځیني یې وپوښتل:

تاسو چې کله په لرګینه قفس او کله د جنګ په  میدان کې یاست د سندورو مطلع مو څه ده ؟

زرکي لکه چې زړه یې د چا نه کوټل شوی وي په یوه سا وویل : ازادي ازادي ازادي

خبریال د کرک نه وپوښتل:

ستا په ږغ کې څه مطلب نغښتی دی ؟

کرک یو سوړ اسویلی وکیښ او ویې ویل:

میاو ، میاو ، میاو(پیشو) زه کرک دلته یم ځکه د ډېر لاس مروړلو څخه د پیشو خوړل شرافتمندانه ګنم.

خبریال بیا د چونګښې څخه وپوښتل:

ستاد زمزمې مطلع څه ده ؟

هغې ویل: قناعت قناعت

خو د هیچا نه خوښیږم له همدې کبله نژدې دی چې له اتحادې نه مې وباسي.

خبریال  له خره نه چې تراوسه یې په سندرو کې ډېري ویاړنې تر لاسه کړی ، څو دیپلومونه او جایزې یې اخیستي او په څو ملي او بین المللي فیستوالو کې یې هم برخه اخیستې ده وپوښتل:

محترمه ستاسو اواز چې موډ روز او د جاز موسیقي د ټون سره برابر دی آیا پوښتلای شم چې د اهنګ مطلع مو څه ده ؟

خره خپله غاړه تازه کړه او په لوړ توخي لرونکي ږغ یې وویل:

زه چې هر وخت واورم چې کوم کانکور ، جایزه یا بورس دی نو په بېړه اتحادې ته ځان رسوم خوله اسمان ته  نیسم او په هر څه توان چې لرم نارې واهم:

ای واسطې را رسيږه ، رارسيږه

د واسطې له رارسيدو نه مخکې چې يې نه لرم زما د لوړ اواز په احترام چې څوک فکر ونه کړي چا وهلی يم هغه ما ته راکوي

# د رییس غروب

د اداري مجلس د پیل څخه مخکې عمومي او واړه مدیران په لوی دهلیز کې داسې سره را ټول شوي وو لکه مچان چې په خوږه ګوړه را تاووي په خبرو لګیاوو

د خدماتو مدیر جلندر خان لاس پر دیوال تیر کړ او ویې ویل :

پوره وهنه شوي ده ګوری لاس سپیره کوي

د ساتنې او څارنې مدیر صدیق خان پرته له دې چې خبره جوړه کړی په ناجوړه کلماتو د خدماتو مدیر جلندر خان ته په پسخند وویل:

کانټین ، دومره لوی کانټین څوک په دوه سوه په کرایه ورکوي د یوې کڅوړې شرینک بیه ده .

د هریوه له خیرې مالومیده چې غوښتل یې د خپلې پاکي د اثبات لپاره اسناد ولري نو یو بل ته یې په شکمنو سترګو کتل .

دا شوي هغه شوي خبري کرار کرار تودې شوې د یو بل خطاب سرحد ته ورسیدې او ټول په کې را ګیر شول .

په دې وخت کې جناب رییس صیب تشریف راوړ او ټول مدیران لکه د شاتو مچی ورپسې د رییس دوتر ته ننوتل او رییس په خپل ځانګړ میز تر شا کیناست او غونډه پیل شوه:

لومړی اجندا د موسسي د شاو خوا ځمکې د اجارې په هکله وه چې د ساتنې او څارنې مدیر پوري یې اړه لرله د ارشیف او خدماتو مدیرانو ګډ سنګر نیولی وو غوښتل یې هغه برملا کړي نو د ارشیف مدیر د شف شف نه تیر شو او په پسخند سره یې وویل:

د مدیر صیب خولی بیا په غوړو کې شوه تاسو یې دا په سپینه ږیري ډسکو جامپر چې په لیکل شوی دی ( ای لف یو) وګوري ، پوهیږي! د چا نه یې اخیستي دي ؟ وګوری وګوری!

ټول مدیران د ساتنې او څارنې په مدیر داسې په غوسه وو ته به ویل د دوی برخه یې خوړلې ده نو د ارشیف د مدیر په خبرو یې زړونه تش شول او ټول مجلس په خندا شو.

د ساتنې او څارنې د مدیر ژبه په خوله کې وچه شوه. د املاکو مدیر جمرود چې د ساتنې او څارنې د مدیرحریف وو داسې وویل:

محترم صدیق خان! ووایه ، هغه تلویزویون دي به یاد دی ؟

د موسیسې د معاون نوراجان لخوا د میز د سر زنګ ته ګوته ور وړه او و رسره یې وویل:

-مستند ، مستند

د محاسبې مدیر هم د دې لپاره چې ځان پاک وښیي د ساتنې او څارنې مدیر ته وویل:

هغه سلیپر بوټ دي څه کړی وایي دیرش زره یې بیه وه !؟

د ساتنې او څارنې د مدیر په تندي خولې لکه مرغلري دیخوا هاخوا لغړیدې حریفانو راګیر کړی وو نه پوهیده کوم مستند شي د غونډې حاضرینو ته وړاندي کړي دیخوا هاخوا ټول حریفان یې تر نظر تیر کړل خو د خدماتو د مدیر چپلیو یې سترګې وبریښېدې ، نو د واره یې د هغه په پښو و رټوپ کړل او په دواړو لاسو یې هغه د میز سره ته را پورته کړې او په خندا خندا یې وویل:

وګورۍ دا يې مستند ( ووايم چې له چا نه يې اخيستي دي ) د خدماتو مدير په څوکۍ کې لويدلی وو او پښې يې پر ميز پورته وې ژيړ ژيړ يې د غونډې غړو ته کتل او د غونډې د غړو سره يې په وقفه يې توګه خندل.

د کارمندانومدير هڅه کوله خپل کميس په کرتی کې پټ کړي د محاسبې مديرخپل ديپلومات د ميز لاندې ورو ورو په پښه تيله کاوه د سوانح مدير خپل کمر بند سست کړ چې پايڅې يې نوی کلوشې پټې کړې رييس هم ورو په خپل دسرو زرو ګوتې ښې لاس کيڼبو خو د رادو ساعت ښوبيني يې سترګې وتخنولې نو ورو يې کيڼ لاس تر ميز تر شا کړ د دريشي انګريزي ټوکر يې هم ورته مشکوک ښکاره شو نو کرار کرار يې د ميز تر شا غروب پيل کړ تر ستوني تر ميز تر شا پټ شو چې قره قلۍ خولۍ ته يې پام شونو غروب يې تکميل شو. ا جندا لا نه وه تمامه شوې چې رييس صيب د ميز له شا نه زنګ ته ګوته ورووړه او د ميز له شا نه يې ږغ پورته شو:

بلا مو وواهه د خندا مړ کړم. غونډه ختمه شوه

# پور اخیستل

میرک چې په عمر کې یې اخیستل شوی پور بیرته نه وو ورکړی په پلمو ،بهانو به یې پور واخیست خو ورکول یې په قسمونو ، تاویزو ، او ټوټکو هم نه تر سره کیدل اوس هغه ټولو پیژانده چې د چا پور نه ورکوي . یو تن کلیوال چې ښار ته نوی راغلی و و خپله چرګه یې میرک ته په پور ورکړه دواړه خوشاله ښکاریده ځکه میرک کلیوال نه پیژاندی او کلیوال میرک.

کلیوال یوازې غوښتل د میرک کور ووینې او هغه یې هم ولید او یوه شپه یې ورسره ه تیره کړه او په سبا کلي ته ولاړ

میرک ډیر خوشاله وو دوه ورځې وروسته کلیوال د دوه نور کلیوالو سره چې د کیمیاوي سرې اخیستلو لپاره ښار ته راغلي وو ورکړه میلمانه شول او ضمناً یې د خپلې چرګې د روغتیا خبریې هم واخیست یوه اوونۍ وروسته بیا کلیوال سره د میرمنې او پنځه ماشومانو د تذکرې د اخېستلو لپاره ښاره ته راغلل او شپه یې د خپل بلدي اشنا کره ورسول او د خپلې چرګې د احوال نه یې هم خبر واخیست او ماشومانو یې هم هغه پردیسه له نژدې ولیدله. درې و رځې وروسته کلیوال خپل د ګاونډې ناروغه میرمن اود ماشومانو سره د میرک کره میلمانه شول او هم یې د چرګې خبر واخېست او دید او باز دید یې ور سره وکړ. میرک سهار د چایو پر ځای په پتنوس کې د چرګې بیه مخې ته ورته کیښوده کلیوال پیسې جیب ته کړې او ولاړ. میرک شکر وکړ چې له دې جنجاله خلاص شو په دویمه ورځ کلیوال د سودا پسې ښار ته راغی نو د چرګې د ا حوال په خاطر د میرک کورته هم ورغی ، میرک په مشکوک ډول ترې وپوښتل :

اخیر پور خو مې درکړی بیا د څه له پاره راغلی یې ؟

کلیوال په ډیره ساده ګۍ وویل:

د چرګې پوښتنې ته راغلی یم. ربښتیا !

څنګه ده ، هګۍ اچوي ،کړت کړت کوی کلي یې نه یادیږي ؟ که ستا خوښه وي څو شپې به یې کلي ته بوځم او د یو سوړ اسویلي وروسته یې وویل :

اي زما پردیسې خواري چرګې! چې زه دی خبر وانه خلم څوک به ستا خبر واخلي

میرک پوه شو چې کلیوال هیڅ کله دا پر دیسه بې پوښتنې نه پریږدي نو هغه و چې مهاجر شو.